# کندهار

د ۱۳۹۳ش کال پنځمه ګڼه

(قوس - جدي)

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه



د کابل پېغله

د جوجو محتوی

مستقیم اخوندزاده

دا تېروتني باید سهي سي

## زموږ خېړونکي څه وايي؟

"زه پخپله په هیڅ ډول په تاریخ کي تر غاښ لاندي خبرو او لیکنو سره موافق نه یم. زه په دې عقیده یم چي قوم ته باید رشتیا وویل سي او رشتیا ویل قام ته هیڅ وخت نه تاوان پېښ کړی او نه ئې پېښوي" (استاد جهاني)

استاد اسدالله غضنفر

# ادبي نظريې

شاعري او هنر به الهام وګڼو، خو ادبپوهنه الهام نه ده، دا بايد زده شي او د همدې له پاره د ادبياتو پوهنځي جوړ شوي دئ، مګر ډېر ځله وينو چې په افغانستان کي به مثلاً د طب يو ډاکتر د ادبياتو تر ليسانسه په ادبياتو ډېر پوهېږي. ډاکتر زغم او ډاکتر درمل چي پر ادبياتو خبري کوي، يو څه ورنه زده کېږي او هغوی چې د ادبياتو فارغان دي، يو لوی شمېر ئې دغه کمال نه لري. په افغانستان کي د ادب پوهنځي اکثره فارغان د افغانستان اکثرو ملايانو ته ورته دي چي ممکن تر دوی په عام اولس کي ځيني کسان د دين په روح باندي ښه پوه وي، خو فرق ئې دا وي چې ملا خپله خبره د عربي لغت په مرسته لږ په پېچلې انداز کوي. خوشحال خټک فرمايي:

د درويش په زړه کي درست کتاب مرقوم دئ
کـــــه په خـــــوله ئې د عـــربو لغت نه زده

زموږ د ادبياتو اکثره متخصصان هم ممکن جملې ته غونډله ووايي او کلمې ته ويی، خو تر دې ورهاخوا به څه خبره نه لري. زما په ګمان کله چي په يوه پوهه باندي تسلط و نه لرو او يا مو يوه پوهه په داسي طريقه زده کړې وي چي عملي استفادې ته پکښي پام نه وي شوی، هاله بيا مجبور يو چي يا په پېچلو جملو او نااشنا لغتونو کي ځان پټ کړو او يا ځيني داسې خبري تکرار کړو چي سمې به وي، مګر پخوا به هم ډېر ځله اورېدل شوې وي. د تدريس ځيني طريقې د فکر خاوندان نه روزي بلکي محصل ته يوازې د حافظې د ښښتن په سترګه ګوري.

د فکر ښښتن د خپل تخصص په ساحه کي نوښت کولای شي او په دې ډول د خپل علم ساحه پراخوي خو هغه څوک چي يوازي په حافظه متکي دئ، د ټيپ غوندي، شوي خبري بيا بيا را اوروي. د ټيپ خبري به سمي وي، ولي دا قدرت پکښي نشته چي پر هره نوې تجربه نوې تبصره وکړي او د ځان له پاره هم يو څه ور نه واخلي.

زموږ په وطن کي د ادبياتو د زده کړي نصاب او د تدريس طريقه خامخا څه نيمګړتياوي لري چي د ادب د لويو صاحب نظرانو په روزلو کي ئې هغومره ونډه نشته لکه څومره چي ور نه توقع کېږي. د دې له پاره چي د ادبياتو داسي فارغان ولرو چي زموږ د ټولني په فکري، فرهنګي او ذوقي وده کي فعاله برخه واخلي، پکار ده چي د ادبياتو د زده کړي نظام ته بيا کتنه وشي. زما په ګمان د دې بيا کتني يو مهم کار به دا وي چي د ادبي نظريو سمي زده کړي ته لا زيات پام واوړي.

ادبي نظريې تر ډېره حده د ادب تيوري له لارې زده کېږي. ادب تيوري نسبتاً نوی علم دئ او همدا وجه ده چي زموږ په هيواد کي په دې برخه کي شوی کار کم او نيمګړی دئ.

د ادب تيوري څه ته وايي؟ يو مشهور مثال به راوړم. که زه په دې باره کي خبري کوم چې الف اثر اول ليکل شوی دئ که ( ب) اثر؟ نو زما موضوع تر ډېره حده د ادبياتو له تاريخ سره تعلق لري. که زه پر دې خبري کوم چي الف اثر ښه دئ، که (ب)، نو زما بحث تر ډېره حده له کره کتني سره تعلق لري او که پر دې غږېږم چي (الف) او(ب) په ادبي اثارو کي حسابولای شو او کنه، دلته زما بحث تر ډېره حده د ادب له تيوري سره متعلق دئ. د ادب تيوري د ادبياتو ماهيت، نقش، معيارونه او حدود راپېژني او له کره کتني سره ئې نېغي اړيکي دي. کله چي د يوه متن ارزښت معلوموو او تفسيروو ئې، په کره کتنه بوخت يو خو کله چي پر هغو معيارونو غږېږو چي زموږ نقد او د متن تفسير ورباندي ولاړ دئ، د ادبي کره کتني پر نظريو باندي غږېږو.

ادبي نظريې مختلفي دي. د مارکسيزم ادبي نظريه ادبي اثار تر ډېره حده د طبقاتي کشمکش او طبقاتي باورونو له نظره څېړي او دا ورته مهمه ده چي يوه ادبي اثر د کوم اجتماعي- اقتصادي نظام په ګټه يا تاوان خبري کړې دي. کله چي دا نظريه نه وه، کره کتونکو او ادبپوهانو ادبي اثارو ته له دې اړخه نه شوای کتلی. پخوانو لوستونکو د رحمان بابا په دې بيت کي هغه معنی او ښکلا نه ليده لکه د مارکسيزم له ادبي نظريې سره بلدو کسانو چي پکي وليدله:

نه شي د خــــانانو له ملنـــــګو ســـره کلي
چېرته عزيزخان چېرته ملنګ عبدالرحمن

فيمينستي نظريه د يوه اثر له دې اړخ سره دلچسپي لري چي د هغه روحي، اجتماعي، اقتصادي، کلتوري او سياسي ستم په زياتېدا يا کمېدا کي ئې څه برخه اخستې ده چي نارينه ئې له ښځو سره کوي. زموږ په وطن کي په شلمه پېړۍ کي ډېرو ليکوالو، صاحب نظرانو او شاعرانو د ښځو د حقونو او مظلوميت خبري وکړې او د ښځو د اهميت په باره کي ئې وويل چي که دوی نه وای ميرويس او احمد شاه به هم نه وو. موږ که له فيمينستي نظريې سره بلد واوسو، د ښځو د اهميت په اړه په شوي استدلال کي پټې بې انصافۍ ته په اسانۍ سره متوجه کېدای شو او هغه دا چي د ښځي اهميت بيا هم د نارينه وو له اهميت سره غوټه شوی دئ او د يوې وسيلې په سترګه ورته کتل شوي دي

(پاته د وقايې پر دريم مخ)






# کندهار

علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

**دریمه دوره**
**د ۱۳۹۳ش کال پنځمه ګڼه (لېندۍ - مرغومی)**
**پرله پسې ۶۶ مه ګڼه**

مؤسس
**محمدولي زلمی**

سرپرست چلوونکی
**مطیع الله روهیال**

کتنپلاوی
**ډاکټر عبدالرازق پالوال**
**څېړندوی شېرشاه رشاد**
**حیات الله رفیقي**
**عبدالکریم طالب**
**فضل محمد پنهان**

کمپیوټر چاري
**عثمان عاصي**

پته
علامه حبیبي واټ
د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست
د کندهار مجلې دفتر
ټلیفون: ۳۰۰۱۴۴۰

**څو ضروري یادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمني لیکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي لیکني بیرته نه ورکول کېږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هیواد او دباندي کي د مجلې بیې**

هیواد: ۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۵۰ - کلداري

**کلنی ګډون**

هیواد: ۱۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۳۰۰ - کلداري

نور هیوادونه: ۸۰ - امریکایي ډالره

# فهرست

## څېړنه



## شعرونه



## ترجمه



## خاطرې

# ځوانان ویښېږي

خوب ئې ډېر دروند وو او د هغه خوب دهشت چي ده لیده د ده غړي رېږدول.

ده لیدل چي په یوه داسي توره تیاره کي زنداني سوی دئ چي نوم ئې "د ژوند دوږخ" وو.

د ناپوهی، اوهامو او خرافاتو خپسکي د ده پر ستوني داسي فشار راوړی وو، چي په ځان کي ئې د خبرو کولو توان هم نه لیده، د "وهم" او "توري تیارې" اهریمن دی داسي په غېږ کي ټینګ نیولی وو چي د نجات هیڅ امید ئې په زړه کي پاته نه وو، حتی دا ئې هم حس کولای نه سوه چي څه آرزو لري؟ او که ئې لري کومو خاورو ته ئې وسپاري؟

موهومي فشار ئې افکار سخت پرېشانه کړي وه، تر داسي حده چي د خپل زړه د رپا ږغ ئې د دېو آواز وانګېره او په ډېره شدیده ضربه ئې خپل زړه په سوک وواهه.

دې ضربې ناڅاپه زلمی له هغه دهشتناکه خوبه راویښ کړ او په ډېره بېړه ئې سترګي پرانیستلې، وحشت زده ئې هري خوا ته وکتل، وئې لیده چي هیڅ نسته او دا ټول د ده د خوب تصور وو، چي دی ئې بېراوه. دنیا ئې په نظر ښکلې ورغله، او ژوندون ئې ځانته په خندا ولید. له تندي څخه ئې د بېري خولې پاکي کړې او هڅه ئې وکړه. ویې لیده چي د ده د تصور پر خلاف دی هم د نورو په څېر پر خپلو پښو تلای سي او په لاسو کي ئې د کار توان سته. په کار ئې لاس پوري کی، وئې کولای سوه چي تر هري طبقې ښه او ژرکار وکړي، شاوخوا ته ئې وکتل یو باشهامته اولس ئې ولید. خو له بده مرغه تر نورو ویښو اولسو ډېر وروسته پاته وو، اما له ښه مرغه ده په خپلو متو کي قوت او په خپل زړه کي آرزو حس کړه، دا امید ورته پیدا سو چي هغه ټولي پسماندګی جبیره کولای سي، نو په کار ئې پیل وکئ.

د عامه جهل سره په مبارزه اخته سو او د ناپوهي تودې د افکارو په تنویر کي ئې سخت زیار ویوست، د اولس خاین او ظالم ئې تر ګرېوان ونیو هغه اوهام او خرافات چي اولس ئې له پرمختګ څخه پاته کړی وو له منځه یووړل. کارګران ئې په کار واچول، هیواد ئې ودان کی، او له ملي ثروت څخه ئې د ټولو په ګټه کار واخیست، هر څه ئې دهر چا کړه او په پای کي ئې د خپل تېر ژوند پر موهومي خوب باندي په ډکه خوله مستانه وخندل.

علامه اکاډمیسین پوهاند رشاد

# دا تېروتني باید سهي سي

د ژوند په هره برخه په تېره بیا د علمي څېړنو په ډګر کي موږ تل د داسې مسایلو سره مخامخ کېږو، چي پخوا مو بل ډول لیدلي، اوربدلي یا لوستلي وي. دا کومه نوې خبره نه ده. د انساني پوهي کچه د هري ورځي په تېرېدو لا هم مخته ځي او د تکمیل او لا تکمیل پر لوري په حرکت کي ده. د انساني ټولني دغه پرمختګ د څو میاشتو، څو کلونو او حتی د څو پېړیو نتیجه نه ده بلکي دا د بشر د تکامل، په کندهاري اصطلاح " د آدمه تر دې دمه" راروان بهیر دئ او په هره ساحه کي د پوهي د ودي سلسله په همدې ډول جاري ده او پر مخ ځي.

هره پوهه د هغه معین وخت د لاسته راوړونو استازیتوب کوي او په هغه خاص ځای کي د لاس ته راغلو معلوماتو واقعاً د قدر وړ ذخیره وي، چي په راتلونکي کي د نورو څېړنو او تحقیقاتو په ذریعه هغه لا بشپړېږي او دغه بشپړه سوې برخه بیا په آینده کي د نورو څېړنو له پاره اساس کېږي او هغه خاصه موضوع د لا تکمیل پر لور مخته ځي.

د انساني پرمختګونو په لړۍ کي ادبیات هم د تکامل د اوږدو پړاوونو څخه تېر سوي، تر موږه رارسېدلي او همداسي به پر مخ ځي او لا به وده کوي.

د ادبیاتو په برخه کي اروابناد علامه اکاډیمیسن پوهاند رشاد بابا یو د هغو منل سویو څېړونکو څخه دئ، چي خپل ژوند ئې تتبع او تحقیق ته وقف کړی وو او د ادبیاتو او تاریخ په مختلفو ساحو کي د علامه بابا لیکني او کتابونه زموږ د تېر نسل یوه بې سارې ذخیره ده، چي نسلونه نور به هم له هغه څخه استفاده کوي او د قدر او منلو وړ به وي. علامه بابا د څېړني په نتیجه کي د لا کره معلوماتو پیدا کېدو ته په خورا درنه سترګه کتل او د څېړنو او دقیقو معلوماتو د لاسته راوړني په صورت کي ئې د پخوانیو لیکنو په تصحیح کي تر خپله وسه کوښښ کاوه او په ډېریو مواردو کي ئې د هغو د نه تکرار په اړه لیکني کولې او لوستونکي به ئې متوجه کول.

په دغه لړ کي (دا تېروتني باید سهي سي) تر عنوان لاندي ئې یوه لنډه لیکنه د پېښور د وفا جریدې د دریم کال د څلویښتمي ګڼې (۱۳ میزان ۱۳۷۳ل) په څلرم مخ کي چاپ

سوې ده، چې د خیرالبیان د (۱۳۵۳ل) کال په چاپ کې، د علامه بابا د مضمون (د خیرالبیان لیک دود) په یوه برخه کې د یوې نوي لاسته راوړني او پر هغه اساس د پخوانیو معلوماتو د اصلاح په اړه لیکل سوې وه.

علامه رشاد اکاډیمي د (خیرالبیان د لیک دود) تر سر لیک لاندې، یاده لیکنه د (د پښتو پخوانۍ الفبې) په نامه د یوې کوچنۍ رسالې په شکل په (۱۳۸۷ل) کال خپره کړه، خو موږ (علامه رشاد اکاډیمي) ته متأسفانه د علامه بابا پورتنۍ لیکنه نه وه رامعلومه نو په دې رساله کې مو د خیرالبیان الفبې په هغه پخواني ډول چاپ کړېده. اوس چې موږ دغه یادونه ولیدل او خپلې اشتباه ته متوجه سولو، د اشتباه د مخنیوي په خاطر د علامه بابا هغه لنډه لیکنه کټ مټ بیا خپر وو. نو له هغو دوستانو څخه چې د (۱۳۵۳ل) کال چاپ (خیرالبیان) او یا (د پښتو پخوانۍ الفبې) رسالې څخه استفاده کوي هیله کوو، چې د الفبې په ۳۱ او ۳۳ مخو کې ئې دغه اشتباه اصلاح کړي.

## دا تېروتني باید سهي سي

**(د علامه بابا لیکلی متن)**

د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي د ۱۳۵۳ ش کال په پای (۱۹۷۵ ع) کي د پیر روښان رحمة الله علیه مشهور کتاب خیرالبیان په عکسي توګه چاپ کړ[1].

د دغي چاپي نسخي په سر کي زما (رشاد) یو مضمون چاپ سوی دئ، چي عنوان ئې دئ: «د خیرالبیان لیک دود». په دغه مضمون کي ما یو ځای کښلي دي:

«د (ځ) اوسنی مروج شکل، چي د (ح) پر سر همزه(ء) کښل کېږي د وزیر محمد ګل خان مومند ایجاد دئ».

ما د دغه مطلب د لیکني تر وخته پوري د رتن چند[2] کندهاري «رهنمای پښتو» نومې رساله نه وه لیدلې. دا رساله د (۱۸۹۲ع) کال په اکتوبر (۱۳۱۰هـ.ق) د هغي کوټې نومي ښار په البرټ پریس کي چاپ سوې ده، چي اووه کاله دمخه هلته عباس کاسي پټه خزانه استنساخ کړې ده. په رهنمای پښتو کي زموږ تر څېړني لاندي توری (Grapheme) د (ځ) په بڼه کښلی دئ، یعني د (ح) توري پر سر همزه لري. په کلمو کي ئې مثالونه دادي:

په درېیم مخ کي: اوس څه. =اب جا.

په شپږم مخ کي: تا له خوب درځي. = تجهکو نیندآتې هین.

په اووم مخ کي: هنه له دې ځایه څو میله ده = هنه یهان سې کتني میل هې[3].

او داسي نور....

د ۱۹۹۳ کال د نوامبر پر دوولسمه (۲۲ عقرب ۱۳۷۲ ش) د پېښور قدرمن لیکوال ښاغلي همېش خلیل خپل یو انتقادي کتاب،

---

[1]– یو بل خیرالبیان هم سته، چي په ۱۰۱۹ هـ.ق. تألیف سوی دئ.

[2]– رتن چند قندهاري د کوټې په مالیاتي دفتر کي مامور وو. دغه کتاب ئې د دغه دفتر مشر (H.S.Burnes) ته اهدا کړی دئ.

[3]– د هنې دره د کوټې ختیځ لور ته له کوټې څخه پنځه نیم میله لیرې ده.

چي د «تول پارسنگ» په نامه د ۱۳۷۰ ش. کال په دلوه (۱۹۹۲ع) کي چاپ سوی دئ، راولېږه. د دغه کتاب په ۱۵۴ مخ کي زما (رشاد) د هغه مضمون په باب یوه ګټوره څېړنه سته، چي د خیرالبیان لیک دود ئې عنوان دئ او د دې لیکني په پیل کي ئې یادونه سوې ده. ښاغلي همېش خلیل په دغه څېړنه کي د «څ» توري د اوسني مروج لیک دود د استعمال تاریخ (په قمري حساب) دوه سوه اته دېرش[۴] کاله پخوا ثابت کړی دئ. ده کښلي دي:

د سکندر خان خټک (غالباً دېوان) یوه داسي خطي نسخه د پېښور د پښتو اکاډیمۍ په کتابتون کي خوندي ده، چي په ۱۱۷۶ هـ ق کال د پېښور نامتو خطاط زین الدین کښلې او په هغه کي ئې (څ) توری په اوسني مروج لیکدود لیکلی دئ، یعني د عربي الفبې «ح» توري پر سر همزه لري.

ښاغلي د خپلې ادعا د ټینګار له پاره د اخون قاسم د «فوائد الشریعت» او صدر خان خټکد «سیف الملوک او بدرۍ» د ځینو نیمګړیو، بې تاریخو او زړو خطي نسخو څخه هم څو مثاله د نمونې په توګه راوړي دي.

زه د زړه له کومي ښاغلي همېش خلیل ته کور ودانی وایم، چي دغي تېروتني ته ئې زما پام راواړاوه او له دې امله ئې هم مننه کوم، چي زما د نوموړي مضمون لوستونکي ئې په املایي څېړونو کي له یوې بې لارې وژغورل. زه د دې منني په ترڅ کي د یوې بلي چاپي تېروتني سمون هم لازم ګڼم او هغه دا دئ:

د نوموړي مضمون په یوه ځای (د کابل چاپ د خیرالبیان ۷۲ مخ) کي یوه جمله داسي کښلې ده:

«د پښتو هغه یو رغ چي په عربي، پاړسي، هندي او روسي [ ] ژبو کي مشترک دئ».

(په پورته جمله کي د عبارت یوه برخه نه ده ټیپ سوې، د [ ] په شکل سره مو هغه ځای په نخښه کړی دئ[۵]) د دې جملې سهي بڼه داسي ده:

«د پښتو هغه یو رغ چي په عربي، پاړسي، هندي او روسي کي نسته او په ځینو قفقازي او د قفقاز د شاو خوا په ځینو ژبو کي مشترک دئ».

***

ټولوونکی حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- دا به ښه وي چي سړی د دوست سره په یوه زولانه تړلی وي تر دې چي د دښمن سره په باغ کي ګرزي.
- ژوند د ښو هیلو بې پایه بهیر دئ، ځکه نو ژوند ښه دئ.
- مړینه هغونه طبیعي ده لکه ژوند.
- ژوند د امیدونو لاره ده، راځئ چي پر ولاړ سو پر هره خوا چي مو بیایي.
- د خپلو ملګرو صفت کوه، د دښمنانو په باب چپ اوسه.
- هغوست ته متوجه اوسه چي تا ځورولی وي.

[۴]– دغه د نېټې تغیر د مضمون د لیکلو پر وخت وو. (علامه رشاد اکاډیمي)

[۵](د علامه رشاد اکاډېمۍ یادونه)



ډاکټر عبدالرازق پالوال .PH. D

## په منځني افغانستان کې

# د خیلزیو پښتنو تاریخي کرښپل

داسي وګړې ټولنه لکه پښتانه چې به هر چیري او هر کله وي، دا بې نخښي، بې نښانه، او بې څرکه وي. دغه مانا دا چې خلګ ئې جاهلان او ټولنه ئې بې تاریخه وي. یوه بې تاریخه ټولنه داسي وي لکه څوک چې خپل پلار او مور نه پېژني. نو اوس چې په پښتنو کښې څه د لیک او لوست خاوندان پیدا سوي دي او پیدا کیږي، نو هیله دا ده چې دوی به د خپلو ټولنو د ثقافت په تر مځکې لاندي آثارو پسي وګرځي او و به ئې مومي او هم به پر مځکي باندي ټولنیزو او ژبنیو نخښو، کرښپل، او قبیلوي اړوندتیاوو پسي وګرځېږي، څو پوهاندانو او زدامندانو ئې د پېژندني نخښي موندلي او د دوی هویت ئې راښوولئ وي. که نه ګانه د مجهولاتو او بې څرکه ټولنو لړ ؤ ډېره څېړنه او پلټنه وسي، موږ به خپلي څېني بې تاریخه ټولني پېژندلي وي. د دغي لیکني مراد او موخه هم دغسي مطالعه ده. ای د یوې ټولني په ترمځنۍ اصل ؤ منشاء پسي به ګرځو. ګوندي پر پېښ سوي به یو.

که پوهاندان وي یا زدامندان او زدامنداني وي، دوی باید پوهنیز سرانښان، کینک، سترګغړاند، او عالمانه تلاښ کوونکي وي. دوی باید لومړی خپل ځانونه او بیا نور د

مجهولاتو په فهم او ماهیت سره پوهولي وي. لانجه به ښايي ډېره دقيقه وي، لکه دا چې ولي نو تور رنګ تور دئ، ولي سپين هم سپين دئ، ولي زرغون هم زرغون دئ او ولي لا شين هم شين دئ او ولي چونيا هم چونيا دئ؟ نور هم داسي.

ولي ختيځوال يا په سرې سره موړ وال ستړي، ستومان، په نيم نس، بدن ئې په بوجړانګو سره نيم پټ او نيم لڅ دئ؟ ولي خواران او ګدايان دي؟ وايي له دغو مرستو څخه مو مننه. نوري مرستي دي لا هم راسره وسي. خو له دغو څخه بله خوا لوېديځوال رسېدلي، پوهان، بډايان، هوسا، او خوښاندان دي. نوري هم خورا ډېري پوښتني سته چې جوابونه ئې تجسس او ګروېږنه غواړي.

زه د کندهار پوهنتون، کابل پوهنتون، يا بل پوهنتون و پوهاندانو او زدامندانو ته يوه اوږ اړخيزه لانجه يا لا کيسی ور وړاندي کوم. څو ګوندي دوی به خپل علمي ترفيعاتي آثار او مونوګرافونه ئې په داسي ډول سره ورباندي کښلي وي چې نوري يا خپلي ادعاوي، فرضيې، يا ښايېدني ئې په دلايلو او اسنادو سره يا ښايولي وي يا ئې ترديد کړي وي. په هر صورت کښي به ئې پايلامه دا وي چې څه پېښه وه.

زه د اړونده پوهانو او زدامندانو توجوه د اوږ ټولنو و اوسنی او پخوانی اړوندتيا ته وراړوم چې دغه اړوندتيا ئې د ژبنيو اداوو په وسيله سره لږ ؤ ډېره يا ښوول کېدای سي يا ردېدلای سي.

زه به د دغي ليکني او ازموينې له پاره اړونده ټولني په نامه سره دريادي کم. آيا د وردګو او ميدان ښار ټولني سره اړوندي دي، که څله بېلي دي؟ هغه چا چې په دغو ټولنو کښي ژوند کړئ نه وي، هغه څه پوهېږي چې د يادي کړي پوښتني جواب هو دئ که يئه دئ؟ يا مثبت دئ که منفي دئ؟ څوک به و چا ته دغه يو يا بل جواب څنګه وايي او څنګه به ئې ثابتوي چې دغه دوې ټولني سره اړوندي دي، که څله بېلي دي؟

د دغسي پوښتني جواب د دوی د ژبنی څېړني له مخي څخه ويل کېدلای سي.

دغسي هم بايد دا ښوول سوې وي چې د شيبر درې د اوسېدونکو او د افغانيې د اوسېدونکو پښتو لهجه يوه ده، که به دوی په دوو څله بېلو لهجو سره ږغېږي؟ که به ئې لهجې دوې وي، نو به داسي پوښتني راپيدا کېږي چې د افغانيې پښتانه کله له کومه ورغلي دي، او د شيبر درې پښتانه کله له کومه ورغلي دي. په داسي حال کښي چې نور اسناد نه وي، د ژبپوهنيزو مطالعاتو په وسيله سره دي ئې يا يووالئ او يا څله بېلوالئ په اثبات ورسيږي.

که دا وښووله سي چې د افغانيې پښتانه او د شيبر درې پښتانه په يوه ژبنی لهجه ږغيږي او نو څکه ئې هم يوه ټولنه جوړوله. بيا نو داسي پوښتنه پيدا کيږي چې نور ئې کله او څنګه په منځ ورکښېوتلي دي چې يوه ټولنه ئې د جغرافياوي چاپېريال له مخي څخه دوې کړي دي. د دغسي ښووني له پاره به ئې لا بل ثبوت او دليل لا ښايي دا هم وي چې منځني

ښار ته چاریکار نومېدئ چیري چي لویي چاړې او سېلاوې پکښي جوړېدلې.

تاریخي داسي څرک سته چي د کابل په شمال کښي یو زمان یوسفزي اوسېدل. دوی له دغه خایه څخه ایستل سوي او تر خیبر کوتل یا د کونړ تر بل کوتل د پېښور و سیمو ته وراړول سوي ول. دوی هورې د یلزاک قبیله بې خایه کړې او مخ د ختیځ پر خوا ئې شړلې وه. اوس به ښایي هغه قبیله د سیند و پوري خوا ته د پنجاب په سیمه کښي اوسیږي.

که به نه ګانه د میدان ښار د خلګو او وردګو لهجې څله ښېلي وي، او دغسي هم د شیبر درې او د افغانیې د اوسېدونکو لهجې څله ښېلي وي یا نه وي، دغه د میدان ښار او د شیبر د خلګو ژبڅانګي دي هم سره مقایسه کړل سي چي څو سلنه مشابهت یا توپیر څله لري. که به دوی نه ګانه مشابهت سره ولاره، نو پوښتنه پیدا کیږي چي دا ولي؟ یا به نو دغه کیسې څوک څنګه سپني؟

یو بل توپیر یا مشابهت چي څېړاند (محقق) باید د خپلو څېړنو پر مهال ورته څیر وي، هغه دا دئ چي دوی، د ښېلا ښېلو ژبڅانګو ړغېدونکي د حرکي او ساکنو تورو یا ړوغونو اداینه یا تلفظ څنګه کوي. په دغه اړوند د یادو کړو اویجو د ژبڅانګو تر منځ د اداینې ړغیز مشابهت ډېر دئ که توپیر؟ ړغیز توپیر په اصالت کښي لهجه بلل کیږي.

که نه ګانه د اوني درې – میدان ښار او شیبر درې –افغانیې تر منځ د لغاتو، جملاتو، او حکایاتو مشابهت تر توپیر ډېر ؤ، دغه پېښه دلالت پر دې باندي کوي چي دوی تر خپلو اوسنیو اویجو چي څله لیري دي، پخوا ئې په داسي اویجو کښي ژوند کاوء چي تر اوسنیو اویجو ډېري سره نژدې وې او تر دغو دمخه به لا په یوه سیمه کښي څنګ پر څنګ سره اوسېدل.

یو بل واقعیت چي د دغو دوو اویجو د اوسېدونکو تر منځ نژدېوالئ یا لیریوالئ یا لا یوالئ او لا څله ښېلوالئ ښووولای سي، هغه د دوی قبایلیت دئ. آیا دوی د اړونده قبایلو خلګ دي. که د څله ښېلو او مجزا قبایلو خلګ دي. دوی په خپلو نسبي شجرو کښي څه مشترکات یا توپیرونه سره لري. دوی خپله نیکه ګنې مشترګه ښووي که څله ښېله؟

زدامندان او زدامنداني باید له خانه سره یو مشترک پوښتنلیک ولري. دغه باید دوې برخي وي. یوه ئې د لغاتو، نومونو، او اصطلاحاتو برخه وي. او بله ئې د خایي اوسېدونکو د ټولنیزو داستانونو، کیسیو، متلونو، او سندرو برخه وي.

په لغاتو کښي باید داسي لغات پوښتل سوي وي چي د دوی د ژوندانه په چاپېریال، کالیو، او بدن پوري اړه ولري. لکه:

چاپېریال: غر، کوتل، پان، ګرنګ، څکې، غونډې، پانده، شېله، مانده، رود، سیند، ناله، واله، ډنډ، کوړم.

لېوان: ګیدړه، چغال، کوړ، ببوې، شرمښ، پړانګ، زمري، سپې، کوترې.

بودګان: غوا، غویي، مېښه، خر، خره، آس، اسپه، غاتره، کورنګې، بهان.

غیلي: وری، پسه، بزه (وزه)، وزګری، مږ، میندء، مېږه، سېرلی.

کرهنه: محکه (پټی، تول)، شیدیاره، یوې، ماله، پنډل، کورد، پوله، لښتی، واله، ورخ، جووه، تېش، سپاره، رخت، جوغ، لور، اره، غوندۍ، جوال، توخم، خسیل، پوچي، لو، کوده، درمند، غوبل، څپر، بادي، راشه.

ورهنه:

پښ: بنی، سوټک، سندان، چګوښ، اره، ترښخ، تراشه، کهی، یوم.

ترکاڼ: کړکی، ور، کټ، صندوق، زانګو، سردری، ګهواره، موړی، ټال.

زرګر: پسول، ګوتمی، بنګړي، وښی، باهو، پېټک، ټیک، والیګان، ډې – ډې، پېزوان، غاړه ګی، لاکیټ، غمی، مری، مریاني، مرغلري، چمکلی، نوسی، لار، پینګ، زر.

کړدی: پېځول، سپرخی، غني، سکام، کراسته، بنمځی، اینځی، نیمځی، کوسی، کوچی، پوستین، برکه Baraka، چوخه،، مراندي، مرانده.

واده: مرکه، نوپلي، کوزده، ناوې، اینګه، زوم، مېره، ماینه، بن، خسر، خوابښې، خوښینه، اخښی، خېښي، خېښه، خېښان، پېکی، نګښی، کاکل، کوځی، چوټي، شاباز.

خپلوان: پلار، مور، میره، بن، بنزی، ترور، تربور، ماما، مامي، اکا، ورور، خور، خویندي، وربره، وراره، ورېندار، یور، یوني.

بدن: بدنه، سر، تندی، غوړ، مخ، سترګه، ورځه، بانو، د سترګی کسۍ، د سترګي نینک، پزه، باړخو، خوله، غاښ، شونډه، زامه، ژبه، تالو، زنه، چینغړک، غاړه، ګروې، ټټر، ولۍ، شا، شمزی، نس، خېټه، ښنګېښر، ورون، ادوم، زنګون، پړکی، پنډی، بجیلکه، پونده، تله، د نښ برعځي.

لاس: لېځی، مړوند، څپر، ګوته، بټه، خمچه، اورغوئ، څېنګل، اړخ، شا، شمزی، نوک.

خوله: وری، غاښ، ژبه.

بدن: ژبی، کرنکه، سبړۍ، زړه، نس، تشۍ، پښتورګی، اینه، تورۍ، ستونۍ، تالو.

کوټی: سر، ککری، مرکنډی، زامه، کلغښي، نزله، تندی، ټېک، مخ، پزه، سترګه، ورعځه، بانو، جیړمه، خوله، غاښ، ژبه، ووری، تالو، ستونۍ، غوړ، باړخو، شونډي.

بدن: غاړه، چین غړک، زنه، ټټر، سبړۍ، اینه، زړه، کرنکه، سره غاړه، شا، شمزی، نس، تشۍ، تورۍ، پښتورګۍ (ډوډۍ)، پښه، ورون، ادوم، زنګون.

لاس، لېځۍ: مړوند، څېنګل، څنګ، خپن، ګوته، ورغوۍ، اړخ.

سر: وربښتان، پېکی، نګښی، شاباز، کوځۍ، برلوکی، کاکل.

کالي: کمیس، پوړنۍ، ګنډ، لستونۍ، سروزنه، ترخځ، کوتنه، انګیا، لنګوټه، لونګ، پرتوګ، پایځه، خښتګ، خولی، خول، لنګوټه، رخچینه، پټو، پټکی، ګوته، بټه، خمچه مشکله، منځوی، نوک، ووری، شمله، جوغه.

ناروغی: زوکام، توره غاړه، شری، کځوک، سکاروۍ، خوراړه، لړمکي، کوۍ، سرپاړۍ، تبه، مړهکه تبه، لویه تبه، بریښ، بړ نیول.

خپلوان: مور، پلار، ورور، خور، زوی، لور پرکټي (پورګوټۍ)، ماما، مامي، اکا، کاکاناوې، ترء، تروري، توري، پورګنی.

خپښان: مېړه، ماينه. خسر، خواښې، خوښينه، اخښۍ، بن، ميره، زوم، ناوې، نجل، پلرګنی، خسرګنی، باجه، يور، مرور، ورېنداره، لېور، لېورزی، ورا، ورابانې، ناوياني، اينګه، اينکی، پاندرۍ، لالا، لالی، دادا، ادې، بنزی.

کور: خونه، ور، درشل، اوډلۍ کور، رپ، چت، بام، تېغه، نغېل، سرای، غولۍ، دېوال، کنډواله، نخره، موري، شريپه، دالان، دالانچه، منا، سوپ، کوډی، کوډل، ستون (ستنه)، اچه، تير، دستک.

پخلنګ: پخليځ، تغری، تبی، تبخی، اور، تنور، داښ، اور لږونی، اورنوسۍ، سکروټه، ايرې، پوړندي، سکور، سکاره، د اور لمبه، بڅري، بڅرکۍ، اورغالۍ، کوره.

خواړه: کترې، کباب، ښوروا، ورجې، مستې، شلومبې، کوچې، پوڅه (پنير)، ګاړه، اوګره، لېټی، شکنه، خاګينه، بټه.

ګونګی، توري، رونډ، کوڼ، چېک، چغر.

مرغان: چرګه، چرګ، چرګوړۍ، کوتره (ارغه، لوټن)، توتکی، ابابېله، چوغکه، چيچی، مينا (ښارو)، کرک، زرکه، جل، شهين، باز، څرخک، بابښه، ټپوس، زانې، کوتان، کومول.

مېوې: توت، بيدانه، تور توت، شاتوت، پمبه يي توت، انګور، اسکري، کشمش، روچه، ايته، وسيني، شونډخاني، شليل، شوتالو، ناک، زردالو، ګيرنګيچ، سېب (منه)، هندوانه، خټکی، مشنګه، شينکی.

آسمان: نمر، سپوږمی، ووږمه، ووږمکی، مياشت، ستورۍ، د آسمان لار، سره و زرغونه، وريځ، برېښنا، تالنده، ټکه.

يادونه: د درکړي پوښتنليک لغاتونه دي همدغسي له پوښتندويانو څخه نه پوښتل کېږي، چي همدغسي جواب درکوي. د دغو مفهوم دي په عبارت سره يا په فارسي سره څني وپوښتل سي. بل دا چي ځيني نومونه تکراري دي. څو پوښتندويانو پوښتندوی يا پوښتونکی ازمويل سوۍ وي چي دی و هم هغي پوښتني ته څنګه جواب ورکوي.

که نه ګانه د شيبر کوتل درې او د اوني کوتل درې د اوسېدونکو تر منځ د لغوي، نحوي او حکايتي مشابهتونو سلنه ئې تر توپيرونو اوز ګرايه ډېره وي، نو موږ پوهېدای سو چي د دوی ګاونډيتوب تر اوس په پخوا کښي له جغرافيايي او اجتماعي پلوه څخه سره نژدې او لا هم سره څنګ پر څنګ ۇ.

اوس نو په دغه حالت کښي دا پوښتنه پيدا کيږي چي دغه سره نژدېوالۍ او څرمه ګاونډيتوب به ئې چيري ۇ او کله به ۇ؟

دغه پوښتنه موږ و يوې داسي ښايېدني ته رسوي، چي دغه خلګ له لوېديځ څخه تر شيبر او اوني کوتل يا اووښتي دي يا وراړول سوي دي. څکه د دې کابو نه ښکاريږي چي دوی دي له ختيځ يا سوهېل څخه په دغو درو ورننوتلي يا ننه ايستل سوي وي. که به ئې څوک دغسي ښايولای سي، څه ممانعت ورلره نسته، او لا ډېره د فهم ور مرسته به ئې لا هم کړې وي چي نورو به زدکړه څني کړې وي.

د دغو وړاندنيو څرګندونو په رڼا کښي سړی داسي پوهيږي چي د دغو دوو اويجو اوسېدونکي د لوېديځ له خوا څخه تر اوني کوتل او شيبر کوتل و ختيځو درو ته وراړول سوي دي. له بلي خو او بل خای څخه به ئې ښايېدنه هم نه وي يا به لا کېدای هم نه سي.

اوس که به پېښنه دغسي وه، نو د شیبر درې اوسېدونکي به په ترمخه کښې په یکاولنګ – ځهاک دره کښې اوسېدل او د میدان ښار اوسېدونکي به په تر مخه کښې په اخزرت – پنجاب – بهسودو دره کښې اوسېدل. له دغې ښایېدنې ځخه داسي پوښتنه پیدا کیږي چې نو څه پېښنه سوې وه. او نو دوی ولې له اخزرت – پنجاب – بهسودو درې ځخه و میدان ښار ته ورلېږدېدلي دي؟ آیا هورې ځوک اوسېدونکي نه ول؟ هغه څه سول؟ دغسي هم که به د یکاولنګ – ځهاک (ضحاک) درې خلګ تر شیبر کوتل د چاریکار او افغانیې و خوا ته وراوښتي وي، دوی ځنګه د چا په ځنګ کښې اوسېدلي او خپل هویت ئې ساتلئ دئ. دغه پېژندنه ئې، لکه ځنګه چي ئې ترمخه یادوءنه وسوه، له ژبنیو څېړنو ځخه ښوول کېدای سي.

هر کله چي موږ په دې باوري سوي یو چي د اوني درې او میدان ښار اوسېدونکي په ترمخه کښې د منځني افغانستان د اخزرت او پنجاب درې اوسېدونکي ول، د شیبر درې اوسني اوسېدونکي د یکاولنګ او ځهاک درې اوسېدونکي ول، نو پوښتنه دا ده چي دوی ولې خپلي ترمخنۍ درې پرې ایښې، او تر نوموړو کوتلونو ځني اووښتي او د ختیځ و اویجو ته ځني لېږدېدلي دي؟

اوس نو که دا وښایوله سي چي د میدان ښار اوسېدونکي په ترمخه کښې د اخزرت – بنجاب، بهسودو اوسېدونکي ول، او د شیبر درې اوسېدونکي په ترمخه کښې د یکاولنګ – ځهاک درې اوسېدونکي ول. بیا نو داسي پوښتنه راپیدا کیږي چي دوی کله له کومي سیمي یا لا اویجي ځخه و منځني افغانستان ته ورلېږدول سوي یا لا ورکوچېدلي ول؟

د دغې پوښتنې د جواب له پاره موږ دوې ښایېدنې لرو. خو له بده مرغه ځخه ئې یوه لا هم په دادِه زړه سره ښایولای نه سو. دا ځکه چي تاریخي اسناد او شواهد په لاس کښې نه لرو. دغه به تش یو ګومان وي، او ګومان به مو د ایمان زیان وي که مو لارء.

یوه ښایېدنه ئې داسي ده: کله چي نادرقلي افشار پر کندهار باندې برید وکړ، د ترنک ناوې (درنګیانا) اوسېدونکي ایسته – دوري ځني وتښتېدل. هغوی چي په لاس ورکښېوتل، هغوی ئې و تهران، خار (ښار؟) او و رامېن ته فرار کړل. آیا دغه خلجیان د منځني افغانستان و اخزرت – پنجاب – بهسودو درې ته او د یکاولنګ – ځهاک و درې ته ځني ختلي ول؟ نور خلزیان د ختیځي پښتیانا په درو – کلو او ښارونو کښې خله وېشلي او پاشل سوي ول.

داسي ځرک، شواهد او اسناد په لاس کښې نسته ځو دا ئې ښوولې او ښایولې وي چي د ترنک ناوې خیلزیان دي و منځني افغانستان ته ورتښتېدلي ول. دوی غونډ و ختیځي پښتیانا ته ځني ورتښتېدلي ول. دغه دا مانا لري چي د منځني افغانستان خیلزیان د ترنک ناوې خیلزیان نه ول. بل لا د دې ځرک سته چي دوی د هغو خیلزیانو چي په مېځیا (مېدیا) کښې اوسېدل او له عربانو مسلمانانو ځخه مځ د ختیځ پر خوا ځني راتښتېدلي ول، او په منځني افغانستان کښې ئې پناه اخیستې وه، خیلزیان ول. دا ځکه چي دوی اسلام نه مانه. دغه به ئې هغه منځنئ کراړ قشر ؤ خو نور تر شا پاته سوي ئې یا مسلمانان کړل سوي ول یا به خرسان ول. خورسانیان هغه خلګ ول چي په ښکاره مسلمانان ول، خو په پټه ئې د خپل پخواني دین پالنه او نمانځنه کوله.

د شمالي ایران هغه پښتانه چې سپاري یعقوب له شمالي ایران څه ورکوچولي او د کابل شاهانو په مقابل کښې ئې د مرکور (مقر) په شاوخوا کښې ئې ځایان کړي ول دوی خپل ځانونه خراسانیان بلل او ګاونډیان ئې تر اوسه هم داسي بولي.

نو که نه ګانه دغه د خراسانیت نوم د میدان ښار یا شیبر درې په پښتنو کښې پاته ؤ، نو دوی به د ترنک ناوې (درنګیانا) هغه اوسېدونکي وي چې د نادرقلي افشار له لاسه څخه تښتېدلي ول.

له هغه زمانه څخه بیا تر هغه زمانه پوري چې غزنوي محمود پر دوی باندې برید کړئ ؤ، یو تکړه بادشاه ئې، چې ښار ئې په نامه لرلئ ؤ، او لا اوس هم د دء په نامه سره یادیږي، هغه ځهاک (ضحاک) ؤ. دی هغه ځهاک کېدلای نه سي چې په وروستنیو لیکنو کښې په غلط فهمۍ سره ماراني ځهاک یا "ضحاک ماران" بلل سوئ دئ. هغه په مېډیا (مېدیا) کښې لوی بادشاه تېر سوئ ؤ.

دغه مانا دا چې د ترنک ناوې خیلزیان بېل خلګ ول، او د منځني افغانستان اوسېدونکي بېل خیلزیان ول. دا چې دوی یوه ټولنه د بلې و مرستې ته ورتللای نه سوای، تکړه مشرتوب، پیاوړئ انتظام او لا هم به ئې آګاهي نه ځني لرله. که به نه ګانه داسي پېښه وه، نو به د دوی تر منځ ارتباطات نه ول. ځکه چې تر منځ ئې کراړ غرونه ولاړ ول.

له بده مرغه چې و مور ته د ترنک ناوې (درنګیانا) د پخوانیو خیلزیانو باوري او معتبر څرک راپاته نه دئ. دغه قبایل چې اوس په ترنک ناوه کښې اوسیږي د دوی کرښپل ایستلای نه سو. هېښانده خو لا بله پېښه ده. په شاه وا (شاجوی) کښې خروټي اوسیږي. دوی په خیلزۍ لهجه ږغیږي. هاله چې تر ۱۱۵۰هـ ق وروسته د ترنک ناوې خیلزیان و لغمان، کونړ، دیر – باجوړ، مله کنډ، سوات – کالام، مردان، پېښور، منسورې، او اکوړې و خوا ته ځني وتښتېدل. د هغو اویجو ځایان یا ستانه ئې بې ځایه نه کړای سوای. دا ځکه چې دوی نامنظم او پناهیان ورغلي ول، نه بریدمن او یرغلګر. ستانه خلګو هم په خپل خان کښې ځای ورکړئ ؤ چې په پایلامه کښې ئې د ګډوډون له اسیته څخه پناهیانو د ځایانو ژبه وراړولې ده او هم ځایانو د پناهیانو ژبه وراړولې ده. د دغه اغښون – بخښون په پایلامه کښې د پښتو یوه نوې یا بله ژبځانګه زېږېدلې ده.

تر ۱۲۰۰هـ ق دمخه په ختیځه پښتیانا کښې دغسي پښتو ویله کېدله لکه اوس چې په کندهار کښې خلګ په ږغیږي. د یاد کړي اغښانتیا او اخښانتیا په ترڅ کښې د ترنکیانو /هخه/ او /هغه/ په ختیځه پښتونخوا کښې په /خه/ او /ګه/ سره واړول سول، او د دوی /ښ/ ؤ /ږ/ په یادو کړو ږوغونو سره واوښتل. له دغې پېښې سره یوه بله نوې ژبځانګه راوټوکېدله، چې لا اوس هم د خپرښت په حالت کښې ده. دا چې خلګ ئې په تنګو ډرو کښې اوسیږي او د اقتصادي چارو له پاره بسیا امکانات نه لري. نو خود مجبور دي چې د زدکړو او هم نورو مشغولتیاوو په تلاښ کښې و اوسي لکه څنګه چې پېښه په منځني افغانستان کښې هم دغسي ده.

له هغه زمانه څخه چې عربانو مسلمانانو پر مېډیا (مدای) چې شاهي ښار ئې ایکبتانا Ekbatana یا اوسنی همدان ؤ، برید وکړ. هغو پښتنو په شاکوچ کښې اوز ماتي ځني وکړلې او

بالآخره د منځني افغانستان د غور په غرونو ځني ننوتل چې وروسته بیا محمود او مسعود غزنوي پادشاهانو مسلمانان کړل. دوی تر هغه زمانه پوري په غور یا لا ټول منځني افغانستان کښې اوسېدل څو چې انګرېزانو (انګلیسانو) پر افغانستان باندي برید وکړ.

کله چې نادرقلي افشار پر کندهار باندي برید وکړ، د ترنک ناوې ټول خیلزي اوسېدونکي مخ د ختیځ پر خوا باندي و لغمان، کونړ، دیر – باجوړ، مله کنډ، پېښور، مردان، سوات، او اکوړې ته ځني وتښتېدل. دوی و یوه ټاکلي ښار یا درې، یا کلي ته ورتلای نه سوای. ځکه چې هغوی ئې د ځایوءنې او مړوني ظرفیت نه لاره. ځکه نو دوی پر بېلابېلو ترو، سیمو او اویجو باندي ځله ووېشل سول. دوی په هره اوېجه کښې و بېلابېلو کورنیو ته پناه وروړه، یا هغیو دغسي ومنل. دغسي کار به هغو کورنیو کړی وي چې توانمندي به وې، او یا هم هغیو د خپل خان یا د خپلي ټولني د ملاتړ و اجتماعي او دفاعي ظرفیت ئې لوړ کړی او تقویه کړئ وي.

که پښتانه عقل مندان وای، د فهم او زدکړو خاوندان وای، جاهلان نه وای، نو به شیطاني قبیلوي تفرقه هم وریکښې نه وای. دوی که به و د غو ورغلو مهاجرینو ته یو موقت ټاټوبئ ورجوړولای نه سوای، دوی دي ئې د هري درې او اویجي پر کلو باندي داسي ځله وېشلي وای چې دوی و خان ته بېلابېل اوسېدولای سوای، او په خپلو ځانو ئې کډ کړي نه وای. هر کله چې د بریدګرو مهاجمانو هېښمه تېره سوې وای، دوی به ئې په خپلي غونډۍ یا مجموعي مرستي سره و خپل وطن او ټاټوبي ته په سمه یا زور سره ورستانه کړي وای. دوی به ولي خپله اوېجه او سیمه بایللای. دغسي نو یوه پلا پېښنه سوې نه ده. بل لا سل پلاوي نوره هم پېښنه سوې ده چې یوه قبیله ئې د بلي یا نورو په منځ یا څنګ ورکښې ایستلې ده. ای وای چې دوی جاهلان نه وای. نو به قبیلو شیطاني تفرقه هم وریکښې نه وای.

بل دا چې دوی سرابښان ول. و تښتندویانو ته ئې هاله په خپل ګاونډ کښې ځای او شومه ورکړه چې لوښي او خوندي ئې و ځان، وروښو، او زامنو ته ځني واده کړې وي، او هغیو ئې هم ژبه په خپلي ژبځانګي سره وراړوله. د دوی زه یان Zayan ئې ور خېلونه Kheluna کړل.

ترنک ناوه چې له ځایي اوسېدونکو څخه تشه توره پاته سوې وه، نو هغو آذریهاوو چې وختینګ ګورګین له ځانه سره د قوې یا ځواک په توګه له آذربایجانه څخه و کندهار ښار ته ورسره راوستلي ول، او د حاجي میرویس نیکه ټل د وختینګ ګورګین تر وژلو وروسته دوی له کندهاره څخه ایستلي او د غورک و غرونو ته ئې شړلي ول، نو کله چې دوی ونغوړېدل چې نادرقلي افشار هم د دوی غوندي شیعه دئ. ځکه ئې نو خپل استازي وروستول. نادرقلي افشار هم دوی وروبلل او په تشه ترنک ناوه کښې، چې خلجي اوسېدونکي ځني تللي ول، و دوی ته دغه دره ورکړه. ای آذري ها ئې په دغه ترنک ناوه کښې ځایان کړل.

کله چې انګلیسانو شاه شجاع د افغانستان پر اورنګ باندي کښېناوء، د دء شاهي ساتندویان هم له دغو آذریهاوو څخه ورمقرر کړل سوي ول او هم به ئې شاهي لښکر له دوی څخه ورجوړ کړئ ؤ. افغاني جنګیالیانو چې پر شاه شجاع باندي برید ورووړ، نو له دء سره ئې اړونده آذریها هم تر برید لاندي ونیول. هغیو دوی و منځني

افغانستان ته پسي واخیستل. دوی په منځني افغانستان کښي د اخزرت Akhzart، پنجاب، او بهسودو اوسېدونکي پښتانه وشړل او تر اوني Oni کوتل ئې و وردگستان ته ورواړول. دوی وردگان مخ د سوهېل پر خوا باندي ولېږدول او په خپله په میدان ښار کښي تر اوني کوتل پوري ستانه سول.

انګلیسانو د کابل په شېرپور کښي قرارګاه لرله. کله چي وزیر محمداکبرخان له بخارا یا ماوراء النهر څخه راواوښت، دی د بلخ آب له لاري څخه و یک اولنګ، بند پامیر، یا بامیان، حاجیګک او اوني کوتل له لاري څخه و کابل ته تلئ. کله چي دی او ملګري ئې وپوهېدل چي و پنجاب او بهسودو ته آذریها ورغلي او ځایان سوي دي. نو به دا ښایېدونې نه وي چي دوی دي د اوني کوتل له لاري څخه و ارغندې ته رسېدلي او له غازیانو سره ملګري سوي وي. ځکه ئې نو لار واړوله او د شیبر کوتل له لاري څخه ئې ځان د کابل د شمالي و غازیانو ته ورورساوه، او ورسره مل سو.

کله چي غازیانو د انګلیسانو اجیر لښکریان مات کړل او ځني وتښتېدل، کله چي غازیان د شېرپور په درشل کښي ول، چیري چي انګلیسانو ځای نیولئ ؤ، دغه مهال د دوی جاسوسانو د غازیانو په منځ کښي انګروزه ګډه کړه چي هزارګانو د پښتنو ښځي تښتولي دي. غازیانو چي هم دغه واورېدل، دوی انګلیسان پرېښوول او مخ د غزني پر خوا ورایله وتل، یا ور په منډه سول. دوی د غزني او قره باغ پاته سوي آذریها هم تر برید لاندي ونیول او دوی ئې هم مخ د منځني افغانستان پر خوا باندي وشړل یا و هغې خوا ته ځني وتښتېدل. هورې ئې د اخزرت او پنجاب د هزارګانو په مرستي سره، د یک اولنګ، بند پامیر، بامیان، او زوهاک (ضحاک) ښار پښتانه پسي واخستل او تر شیبر کوتل ئې د چاړې کار (چاریکار) و خوا ته ور واړول، یا ځني واوښتل. دوی هم په شیبر دره کښي ځایان سول او هم به کښته د چاریکار و خوا ته ورغلي ول.

وګړې ټولنه چي به هر چیري او هر کله وي، دا بې څرکه، بې نخښې او بې نښانه وي. دغه مانا دا چي هغه ټولنه تاریخ نه لري. یوه بې تاریخه ټولنه داسي وي لکه څوک چي خپل مور او پلار نه پېژني، ای د دوی نومونه ئې زده نه وي، او نه ئې نور هویت یا څوکوالئ پېژني. دا به د ارزښت وړ وي چي پوهان او پوهاندان ئې د هویت پېژندني له پاره په یو راز ؤ بل راز څرک، کرښېل، او ژبنیو نخښو پسي وګرځېږي. ښایي د دې ښایېدنه به وي چي د هغیو له مخې او په مرسته سره دي د هغه توکوم لږ یا ډېره پېژندنه وکړای سي. دغه راز پېژندنه به د هغې ټولني په هویت پېژندنه کښي د فهم وړ ارزښت ولري. مراد دا دئ چي دغه مجهوله ټولنه چیري وه او چیري ده.

عربانو مسلمانانو چي یزدګورد، د پارس او غونډ ایران او عراق بادشاه ؤ، دی چي ئې له خپلي سپاه او لښکر سره له عراق څخه ایستلئ ؤ، دی د نور لښکر په غونډولو سره په وارو وارو له عربو مسلمانانو سره جنګېدلئ ؤ. د دهٔ د عراق جنتونه (باغونه) ارمان ول. دی په اوز مخامختیاوو کښي مات سوئ او ځني

تېښتېدلئ ؤ. په دغه سلسله کښې د مېځیا (مېدیا) خیلزیان، چې شاهي ښار ئې ایکبتانا (همدان) ؤ، تر پرله پسې ماتو وروسته دوی و منځني افغانستان ته ځني تېښتېدلي او د غور په غرونو کښې ئې پناه موندلې وه. په دوی پسې ابدالیان هم په پرله پسې ماتو کښې مخ د ختیځ پر خوا باندي تېښتېدلي ول. دوی دکوړ ک او سلیمان په غرونو کښې پناه اخستې وه. د دوی د ماتو او تېښتېدنو اصلي عامل د دوی قبیلوي تفرقه وه. دغه قبیلوي تفرقه ئې د جهالت او ناپوهۍ زېږنده او په دوی کښې نفوذ او اغېز لرونکې وه او لا هم ده. قبایل او قبایلیت ئې هیڅ راز مترقي مفکورې، نظریې او اهداف نه لري.

ګوډ تېمور د غور له پښتنو سره جنګېدلئ ؤ، چې شاه ئې په هغه زمان کښې خیلزي ابدال یادوي. د دهٔ بیان مارسل بریون په فرانسوي کښلئ او ذبیح الله منصوري په ایرانۍ فارسي ترجمه کړئ دئ. ما دوه واري و پښتو ته راژباړلئ دئ. لومړنۍ ترجمه ئې غلو راڅخه تروښوولې ده او څه ترمخه مي بیا راترجمه کړ. ګوډ تېمور د غور له پښتنو سره جنګېدلئ ؤ. د خیلزي ابدال شاهي پر غونډ منځني افغانستان باندي چاپېره وه. که نه ګانه خیلزي ابدال له دې څخه پوهېدای چې ګوډ تېمور پر فیروزکوه باندي یرغل کوي او دهٔ له ټول منځني افغانستان څخه جنګیالیان ورغونډ کړي وای، په جنګ کښې به ئې دغه د ګوډ تېمور د بادشاهۍ او ژوندانه پای وای.

ګوډ تېمور د هندوستان په کښې او برید کښې خیلزي ابدال او د دهٔ لښکر هم له خان سره ملګري کړي ول. خیلزي ابدال له ګوډ تېمور سره هم په جنګ کښې ډېر ژوبل سوئ ؤ او ښایي په هندوستان کښې به ئې هم بدن ژوبل سوئ ؤ. دی به ښایي له زخمونو څخه یا په جنګ کښې وژل سوئ ؤ. اوس و اسلام آباد ته نژدې او تاکسیلا ته څرمه پر یوه لوړه غونډۍ باندي د حسن ابدال په نامه ښختون دئ. په اغلب احتمال سره به دغه د غور د خیلزي ابدال ښختون وي. که به دی نه وي نو به بل څوک ابدال وي؟

**پایلامه:**

اوس نو د زدامندانو هدف او غایه باید دا وي چې وروستنۍ پېښاوله –دا چې د اخزرت، پنجاب، او بهسودو پښتانه تر اوني کوتل ځني اوښتي، او د میدان ښار و خوا ته، او هم د یکاولنګ، بند پامیر، بامیان، او ځهاک درې – پښتاه تر شیبر کوتل وراړول سوي او هم په دغه دره کښې ځایان سوي دي.

دا چې دغه پایلامه صحیحه او رشتیانۍ ده، که اشتباه او غلطه ده؟ زدامندان په خپلو څېړنو او ګروېړونو سره به ښایي چې دغه پایلامه تصدیق یا تردید کړي. د دغه کار له پاره باید زدامندانو څه کړي وي څو دوی و دغي نتیجې ته رسېدلي وي. وړاندیز بیان ئې ترمخه درکړه سوئ دئ، باید یو پوښتنلیک ئې تطبیق کړئ وي. په دغو هره ټولنه کښې ئې باید وګړیز ادبي معلومات او ژبني معلومات غونډ کړي وي. دغه به د زدامندانو تحقیقي موضوع وي، څو خپل مونوګرافونه او علمي آثار ئې ورباندي کښلي وي.

***

محمد هارون خپل شعشعي/ لندن

# د «ننگول» سهي او جعلي مانا

په افغاني مطبوعاتو کښې د ډېرو بې خونده او کمزورو نوو ټکو، ترکیبو او عبارتو تر څنگ، کله کله ځیني لرغوني ټکي هم په ناسمو او جعلي ماناوو کارېږي، چې «ننگول» یا «ننگونه» یې یو روښانه مثال دئ. په دې لیکنه کښې د علمي او ادبي شواهدو په وړاندي کولو سره د دې اشنا او مروجي کلیمې د اصلي او جعلي ماناوو په اړه څو لنډي خبري کوو.

په ناسمه او جعلي مانا د «ننگول»، «ننگونه» او «ننگوني»کاروَل له هغه وخته پیل سول، چې ایراني ژباړونکو د انگرېزي چالینج/چیلینج (challenge) یا ورته اوروپایي ټکو د ترجمې دپاره د پرېمانه پارسي ټکو پر ځای د تۆرکي ژبي و «چالش/ چالیش» ته مخه کړه؛ او زموږ ځینو پېښه گرو دري ژبو ژورنالیستانو او لیکوالو یې هم په پټو سترگو پیروي وکړه. ما ته په پښتو کښې د «ننگول» یا «ننگوني» ناسمه او جعلي مانا ځینو نورو ټکو غوندي د پوهاند صاب (صاحب) ډاکټر مجاور احمد زیار له لغوي اختراعاتو او ایجاداتو څخه ښکاري؛ ځکه د پښتو په لرغوني او معاصر ادب کښې (کښې یې) د استعمال هیڅ څرک نه لیدل کیږي. ښاغلی زیار له خپلي وضعه کړي مانا سره دونه اِفراطي مینه لري، چې د یوې کوچنۍ لیکنې په څو پرله پسې جوملو کښې څلور واره تکرار کړې ده. دی کاږي: «ټیک د ۱۳۸٦ل/۲۰۰۷ په هماغو لومړیو شپو ورځو کې چې ما د ۱۳٦۰ل کال چاپ شوې پښتو لیکلار له نویو زیاتونو او کرونو او بیا نوي نامه (پښتو لیکلارښود) سره چاپ ته سپارلې وه، هوتک صاحب راته له

کراچیه د ډاکتر پالوال (معیاري پښتو) پنډ و پېړ کتاب زما پر پته اکسفورډ ته راواستاوه، نو ما یې په غبرگون کې اړوند خپرندوی ته دا لاندې ((ننگونه)) وروا‌ستوله او هغه هم د کتاب پر تندي ور سرباري کړه: ما هم ورته له دې پرته چې خپل دا له چاپه له راوتو سره ور ډالۍ کړم، نور څه نه درلودل. خکه پوره باوري وم چې هماغه ((ننگونه)) او اړونده چلندلار (پروسیجر) به یې بسیا کاندې خو له بده مرغه وار له مخه یې د پالوال د کتاب تر څنگه خپله ټولگه زما د ((ننگونې)) د ننگونې لپاره کافي او شافي گڼلې وه. نو که دغه پروسیجر او اړوند لارښود په اسماني کتابونو او صحیفو هم ورزباد کړم، بیا یې هم خپله سیمه واله منلو ته نه پرېږدي او ټولمنلي گرځودي ((غورچاڼ)) رانه‌گوي... »ٔ.

د پښتو و محققو ژبپوهانو، لغتپوهانو او ادیبانو ته څرگنده ده، چې «ننگول» د پښتو د جنوب – لوېدیځي لهجې د ویونکو ډېر عام او مُروَّج ټکی دئ؛ هره روځ یې د عام و خاص په خبرو او محاورو کښې په پېخر استعمالیږي؛ مثلاً د دې لهجې ویونکي وایي: «پلاني ډېر زیارتونه او پیران و ننگول، خو تر اوسه یې لا د بخت غوټه نه ده خلاصه سوې.»، «پلانی هم در و ننگوه، گوندې په دې نېک کار کښې څه ونډه واخلې.» او داسې نور. راسئ تر دې شفاهي مثالو وروسته، د پښتو په معاصر ادب کښې هم د دې ټکي د استعمال څو روښانه مثالونه وگورو:

د پښتو استاد او خدمتگار – ارواښاد مولوي صالح محمد هوتک (۱۳۰۸ق/ ۱۲۶۹ش – ۱۳۸۰ق/ ۱۳۳۹ش) د خپلې «پښتو مثنوي» په شرو (شروع) کښې د «زما عرض» تر عنوان لاندې داسې راوړي دي:

پر نېک فال مې دی نیولی
مــولوي مې ننـــــگولی

پېنځه بیته کښته بیا هم «ننگوم» ټکی راوړي:

زه چې هر بیت جوړوم
مولـــــوي پر ننگوم

د پښتو نامتۆ فولکوریست، ادیب او قاموس لیکۆنکي – ارواښاد محمدگل نوري (۱۲۷۹ – ۱۳۵۲ش) هم د خپل ناچاپ اثر «زوړ کندهار» په یوه برخه کښې «ننگول» ټکی په کټ مټ دغه مانا استعمال کړئ دئ. دی کاږي:

«... د احمدشاه بابا ښار په څورلسو غۆلبو مځکه کي، چي اته سوه او څلوېښت جریبه مربع کېږي، جوړ سوی دئ؛ د توپخانې دروازه مخ پر قبله وه، ښکارپر دروازه د سهېل پر خوا او د عیدگاه دروازه مخ د قطب پر خوا خلاصېدله. د احمدشاه بابا د ښار دروازې او څنځیرونه به ښځو د تبرک پر ډول ننگوله او د ښځو پر تیو چي به درد وو یا به ئې شیدې نه درلودې نو دغه څنځیرونه به ئې پر ېولله او په هغو اوبو به ئې خپل تي مینځله نو الله تعالی به ئې تي جوړ او شیدې به ئې جاري کړې. د دروازو خاوره خورده گڼل کېدله هر چا به وړه او د خوردې پر ډول به ئې خوړله...»ٔ.

لوی استاد – ارواښاد علامه عبدالحي حبیبي (۱۲۸۹ش/ ۱۹۱۰ع – ۱۳۶۳ ش/ ۱۹۸۴ع) په یوه تحقیقي شننه کښې د اخون

پنجو د نامه او شهرت په اړه داسي کښلي دي:

«سید عبدالوهاب تر سلطان محمود وروسته د پښتنو مشر سو او د ده د خلافت چوغه یې واغوستله او هغه وخت یې عمر ۴۸ کاله و. په ۹۹۰ هـ کي د پېښور اکبر پوري ته راغئ او دلته یې له اټکه تر خیبره یو ملي او روحاني تنظیم جوړ کړ او د عمر پر ۹۶ کال د رمضان پر ۲۷مه ورځ دوشنبې ۱۰۴۰هـ همدلته مړ سو او قبر یې تر اوسه هم معلوم دئ، خلک یې ننګوي.»'

په تېرو درو سرو ادبي مثالو کښي هم له ورایه ګورو، چي «ننګول» له کم (کوم) چا یا کم شي څخه د پېرزویني یا کومک غوښتلو په مانا دئ، نه د مخالفت کولو، ضدیت کولو، اعتراض کولو او ردولو په مانا، چي د ښاغلي زیار صاب په لیکنه کښي څو پلا تکرار سوئ دئ. زموږ هوښیار او حقپال لوستونکي په خپله قضاوت کولای سي، چي کومک غوښتل چیري او رَدوَل یا اعتراض کول چیري؟! البته، دا ټکی د افغانستان په رسمي او سرکاري مطبوعاتو کښي د مشکلاتو او خنډونو په مانا هم کارېږي، چي هغه هم د «ننګول» له اصلي او سهي مانا سره بشپړ مغایرت لري؛ مثلاً ویل کیږي: «مبارزه علیه فساد اداری با چالش های جدیدی مواجه گشته است.» په پښتو کښي وایي: «د اداري فساد پر ضد مبارزه، له نوو ننګونو سره مخامخ سوې ده.»

د دې علمي شواهدو او دلایلو په رڼا/ رڼا کښي باید له ښاغلي زیار او ملګرو څخه یې پوښتنه وسي، چي د «ننګول» دا نادودي او متضاد ماناوي مو چیري ومؤندلې؟! کشکي خو د دې خودساخته او خودپرداخته مانا د اثبات دپاره له پښتو ادب څخه یو، فقط یو، سند هم وړاندي کي!

ښاغلی زیار ادعا کیي، چي په خپله مښتو (مجاوري پښتو) کښې د ده په وینا د کنداریانو و ځینو ټکو لکه ننګول، ترینګلي، پوړ او داسي نورو ته هم ځای ور کړئ دئ؛ خو حقیقت لمر غوندي روښانه دئ، چي زیار صاب او ملګرو یې پر خپلو زرو جعلي او خودساخته ټکو سربېره د کنداریانو له دغو ټکو سره هم لو او نه بخښوُنکې جفا کړې ده. دا جعلي او ساختګي مفاهیم کټ مټ داسي مانا لري لکه څوک چي په خوّله انار وایي، خو په زړَه کښې مخسد انګور یي، انار خو ټول پښتانه د انارو (سور مي سندوخک د سرو غمییو ډک) په مانا پېژني نه د انګورو. کله چي انار وایو باید مخسد او مراد مو همدغه د سرو غمییو ډکه مېوه یي نه انګور، چي د تعریف او توصیف دپاره یې باید بله کیسې جوړه سي. واقعیت دا دئ، چي په جعلي، متضاده او ناسمه مانا د یوه پېژندل سوي او منلي ټکي کارول، کټ مټ داسي مانا لري لکه څوک چي روځ د شپې یا برعکس شپه د روځي په مفهوم استعمال کي. د دې استدلال له مخي باید ننګول، ترینګلي، پوړ او داسي نور هم همېشه په هغه مانا استعمال کو، چي په خلګو کښي دود ده. یو وخت ښاغلي نورالباري له کندهاره په یوه کړنه کښي لیکلي وه، چي هارون خپل د لویو استادانو (مخسد یې پوهاند زیار ؤ) پر لیکنو هم په سره قلم چلیپا کاږي. زه وایم: که د نورالباري «لوی استادان» د بسته اولس ژبه په

خپل لاس کښې اخلي؛ او د شخصي ذوق، تعصب او تحریف له مخې چپه و راسته غوبولونه پکښې کیږي، بیا خو هارون خپل بې سره قلمه هیڅ چاره نه لري؛ ځکه پښتو د یوه لوی او پیاوړي قام ژبه ده. هر پښتون حق څه چي وجیبه او مسؤلیت لري، د خپلي مورنۍ او پلرنۍ ژبي د دغه راز بې خوندۍ او ورانۍ په ټینګه مخه ونیسي.

که چیري یو نیولوجیست په شعوري یا غیرشعوري توګه د خلګو پر مُروَجو او معمولو مفاهیمو د بطلان کرښه کاږي؛ او پر ځای یې له خانه نوي ماناوي را باسي، په داسي حالاتو کښې به د خلګو له اشنا او مأنوسو ماناوو سره څه چلن کیږي؟! ایا کولای سو د کلیمو مُروَجي او مُستعملي ماناوي هم چټلو او منسوخو کاغذو غؤندي، په کَچرَه/ خَشرَه کښې واچوو؟! مګر د کلیمو ماناوي او استنباطات په یوه روځ کښې جال سوي دي، چي د «لغت تراشانو» په امر به د سترګو په رپ کښې د خلګو له حافظو پاکیږي؟! بله اساسي او ارزښتناکه پوښتنه دا ده چي، ایا بې ځېړني او پلټني، بې هر ډوَل سلا او مشورې د ژبي و لرغؤنؤ کلیمو ته نوي ماناوي تراشل د زړو او نوو مفاهیمو تر منځ و ټکر او ګډوډۍ ته لمن نه وهي؟! تاسي وګورئ «مرسته» زموږ په لرغؤني ادب کښې هر ځای د غوښتني، طلب، تر لاسه کولو، لټون، اشتیاق، هیلي، اومید او داسي نورو په مانا راغلې ده. د پښتو عالیمقام عرفاني شاعر – علي محمد مخلص(تر ۱۰۶۹ هـ ق پوري په یقین سره ژوندی)وایي:

د بلبل په دود پــه مرسته د ګـلزار ځه!
له طلبــه مـــه دریږه بېقـــرار ځـه!

د پښتو نومیالي شاعر – خوشال خان خټک (۱۰۲۲ – ۱۱۰۰ هـ ق) دا کلیمه په یوه غزله کښې داسي را وړې ده:

اوس مي بیا مونده په کور کښې
چـــه دایم یې وم په مـــرسته

د حمید بابا (تر ۱۱۴۸ ق پوري په باوري توګه ژوندی) په دیوان کښې هم په کټ مټ دغه مانا راغلې ده:

خودکام آشنا په مرسته د خپل کام لاړ
له عـــزیزه ناآشـــنا په اوږده ګام لاړ

تاسي د پښتو د لرغؤني ادب په هر منظوم او منثور اثر کښې وګورئ، «مرسته» تقریباً هر چیري په دغه مانا استعمال سوې ده؛ خو په خواشینۍ سره نن د افغانستان د علومو اکاډیمۍ د پښتو – پښتو تشریحي قاموس او ډېرو نورو پښتو قاموسو په ګډون، زموږ په شفاهي او تحریري ادب کښې دا کلیمه یوازي د کومک (کمک)، بسپني، معاونت، اعانې، چندې او داسي نورو په مانا استعمالیږي. حتا د پخوانۍ مانا تشه یادونه یې هم څوک نه کیي. پوښتنه دا ده، چي پښتو او پښتنو ته د مرستي د نوي مانا په تجویز او دودولو کښې عملاً څه ګټه ورسېدله؟! هغه مانا یې تر خاورو لاندي سوه، چي په ټولو ادبي اثارو کښې ثبت سوې ده، خو هغې مانا یې دونیا پر سر واخیسته، چي بې ادبي لرغؤنتیا د شخصي ذوق له مخې ټاکل سوې ده. ایا په دې کار سره مو، په لوی لاس خپله پښه په تبشه و نه وهله؟! خپل لرغؤنی ادب مو ځان ته پردی

یا لږ تر لږه سخت او ناآشنا نه کېږي؟! تاسي د ژبي ګرانول، بې خونده کول، پیکه کول او بالاخره ورانول څښي ته وایاست؟! ایا دا یې له زرو مثالو څخه یو کوچنی، مګر ژوندی او روښانه مثال نه دی؟!

د دې استدلال له مخي باید موږ ټول په دې خبره سر خلاص کو، چي په تیاره کښي ټوپونه وهل، چا ته هیڅ ګټه نه رسېږي. نوموړی/نومړی، ترینګلی، پوړ، ننګول او ډېري نوري کلیمې هم ګرده د دغه ډول ټوپو مثال لري. تاسي وګورئ نوموړی/نومړی زموږ په زرو ادبیاتو کښي هر ځای د نامي، نامدار، نوموتي، نؤمؤر، نامتؤ، نؤمیالی، مشهور او داسي نورو په مانا راغلئ دئ. د جنوب– لوېدیځي لهجې ویؤنکو دا مفهوم تر یوحده ژوندی ساتلئ دئ؛ مثلاً دی (دوی) وایي: «پلانی په پوهه او هوښیاری کښي نوم وړئ دئ.» یاني پلانی په پوهه او هوښیاری کښي نامي او نامداره دئ؛ خو نن ګورو چي ژورنالیستان، شاعران، لیکوالان او حتا ډېری څېړونکي یې د پارسي «نامبرده» د پښتو معادل په توګه کاریي؛ حال دا چي هیڅ پښتون، له چتراله تر هراته، هیڅ ځای دا ټکی د پارسي «نامبرده» په مانا نه کاریي. عجبه خو دا چي ځیني یې و بې ساه یا بې جانه شیانو ته هم په پېخر استعمالیي؛ مثلاً دی وایي: نوموړي مرستي، نوموړي دوکانونه، نوموړي تلوېزونونه او داسي نور؛ په داسي حال کښي چي د دې مخسد دپاره خو په پښتو کښي له ده، هغه، دې، هغې، دی، هغی (هغوی) د شخصي او اشاري ضمیرو څخه کار اخیستل

کېږي؛ مثلاً پښتانه په خبرو کښي د نارینه د نامه د تکرار پر ځای وایي: «هغه لوی پهلوان دئ.» هیڅکله نه وایي: «نوموړی لوی پهلوان دئ.» د ښځینه نامه د تکرار پر ځای وایي: «دې/ هغې په ځوانانو اور لګولئ دئ.» هیڅکله نه وایي: «نوموړي په ځوانانو اور لګولئ دئ.» نوموړي مرستي، نوموړي دوکانونه، نوموړي تلوېزونونه او داسي نور هم ټول له پارسي څخه ترجمه سوي او جعل سوي عبارتونه دي. زموږ خلګ یې پر ځای دغه/هغه مرستي، دغه/هغه دوکانونه، دغه/ هغه تلوېزونونه او داسي نور وایي. ترینګلی د پښتو د جنوب – لوېدیځي لهجې لرغؤنی او ډېر مستعمل ټکی دئ، چي له باباآدمه تر دې دمه د پرؤس، برؤس، عبوس، تریو تندي، بدمزاجه، بدخویه، خوابدي، خپه، بدنیته، شؤم، سؤګت، اروا وړي، کنجؤس، بخیل او داسي نورو په مانا استعمالیږي، خو ښاغلی زیار صاب او شاګردان یې بې سنده، بې دلیله هره روځ په ویبپاڼو، ورځپاڼو، رادیوګانو او تلوېزونو کښي د ناارامه، بې ثباته، ناکراره او داسي نورو په مانا کاریي. د دې پر ځای چي و وایي: «د هیواد حالات ناارامه یا ناکراره دي.» دی وایي: «د هیواد حالات ترینګلي دي.» کنداریان چي له رادیو یا تلوېزون څخه د «ترینګلو حالاتو» عبارت واروي، یو و بل ته وګوري؛ هک پک سي چي خدایه «ترینګلی» خو پېژنو، مګر دا «ترینګلي حالات» یې بیا څه ټکه ده! «پوړ» هم له اوږدو زمانو راهیسي د ودانی د یوې طبقې یا منزل (storey, level) په مانا په خلګو کښي پراخ استعمال

لري؛ مثلاً خلګ وايي: «پلانۍ ودانۍ اوږ (دوُنه/ هغونه) پوُړه لري.»،«زموږ کور په پينځم پوړ کښې دئ.» او داسي نور؛ خو نن ګورو چي زموږ لغت تراشان او لغت پرانان (نه لغتپوهان) يې د ودانيو پر ځای و انسانانو ته پورته کښته کيي؛ مثلاً وايي: لوړ پوړي چارواکي، لوړ پوړی پلاوی او داسي نور.

لکه څنګه چي عربان د نارينه او ښځي دپاره «محترم» او «محترمه» يا هنديان د شري او شريمتي ټکي کاريي، موږ هم د دې مخسد د پاره «ښاغلی» او «ښاغلې» لرو، چي «ښاغلی» يې د نارينه او «ښاغلې» يې د ښځي دپاره استعماليږي. اوس نو که نارينه ته «ښاغلی» او ښځو ته بې دليله «آغلې» و وايو، بيا خو پوښتنه دا ده، چي له «ښاغلې» سره بايد څه معامله وکو؟ «ښاغلې» خو د پښتو د جنوب – لوېديځي لهجې په خبرو او مرکو کښې شپه و روځ کاريږي؛ حال دا چي «آغلی/ آغلې» له سوو کلونو راهيسي نابابه او نادوده ده. پښتو متنپوهانو ته مالومه ده، چي«آغلی» زموږ په لرغوُني ادب کښې و مذکر او موُنث دواړو ته راغلئ دئ؛ خو «ښاغلې» په سل کښې سل موُنثه صيغه ده، چي يوازي و ښځينه جنس ته استعماليږي.[1] البته، دا موُنثه صيغه نه يوازي د چا د شخصي ذوق يا لهجه يي برتري غوښتني محصول نه ده، بلکي د پښتو په لرغوُني ادب کښې پوخ او پياوړی ملاتړ هم لري. مانا دا چي د جنوب – لوېديځي لهجې ويوُنکو د دې کليمې په کارولو سره د خپلو پلرو او نيکو ژبه په پوره امانت او اصالت خوندي کړې ده. دلته يې د پښتو د لوی او پياوړي شاعر، خوشال خان خټک، له ګلياتو څخه يو مثال وړاندي کوو:

تر ســـر تر پايه ليلا ښـــاغلې ده
سينه يې ځکه د مجنون داغلې ده
مينه څـــه هسي آســـانه نه ده
چي ښځـــايه په چـــا راغلې ده[2]

په دې خبره د هر چا سر خلاصيږي، چي د نوو شيانو يا نوو پېښو د افادې دپاره د ژبې له زړو ټکوُ څخه استفاده هيڅ بدي او مانع نه لري؛ لکه د پوهنتون ترکيبي ټکی، چي د پښتو له «پوهنه» او «تون» څخه ترکيب سوئ؛ او د يوه کاملاً نوي لغوي مفهوم يانې انګرېزي يونيورستۍ (university) د افادې دپاره په کار لوېدلئ دئ. زموږ خلګو پخوا پوهنتون نه پېژندئ؛ خو له پوهني او تون سره يې پخوانۍ اشنايي لرله. په دې خاطر نو د داسي ټکوُ په استعمال او رواجولو کښې هيڅ ځنډ او خنډ نسته؛ خو ننګول، نوموړی، ترينګلی، پوړ او داسي نور هغه ټکي دي، چي له سوونو کالو راهيسي په خاصو ماناوو استعمال سوي يا تر اوسه هم استعماليږي؛ ځکه يې نو په نوو ماناوو کارول، خلګ له لويو مانوي (معنوي) کړاوُنو او ګډوډيو سره مخامخ کيي.

دا خبره سمه او سهي ده، چي د زمانې په تېرېدو سره د هري ژبې په لغتو، تعبيرو او محاورو کښې مانوي بدلونونه راځي؛ خو سره له دې هم اديبان، ژبپوهان او لغتپوهان نه يوازي د کليمو و زړو ماناوو او تعبيرونو ته ناپامي او بې پروايي نه کيي، بلکي په ساتنه او روزنه کښې له هيڅ ډول زيار او کوښښ څخه

مخ نه اړيي. ادبپوهنه، ژبپوهنه، لغتپوهنه، عقل او منطق هم ټول حُکم کيي، چي د خلګو ژبه، ادب، فوکلور او نور فرهنګي ارزښتونه بايد هيڅکله تر شخصي ذوق، لهجه يي، سمتي، قومي، سياسي او نورو اختلافو قرباني نه سي. زموږ «لغت تراشان» او «لغت پرانان» بايد و دې خبري ته ژور پام وکي، چي د نوو ټکو او نوو ماناوو په رواجولو کښي خپلسري او منماني، ژبه له خلګو پردۍ کيي؛ او په دې خبره هم د هر پوه او هوښيار شخص ښه سد رسيږي، کله چي د ژبي او نورو فرهنګي ارزښتو ريښې په اولس کښي وچي يا پرې سي، بيا نو د هغې ژبي او هغه دود و دستور ساتنه او پالنه هم په يوه ناممکن کار بدليږي؛ ځکه خلګ هيڅکله د پردۍ ژبي او پردي دود و دستور په دفاع کښي نه دريږي؟! همدا وجه ده، چي متنفذي ژبي او يرغلګر فرهنګونه د سترګو په رپ کښي د دغه راز مړو او بې ريښو ژبو ځاى نيسي.

مخکي مو د «ننګول» پر سهي او جعلي ماناوو څه روڼا واچوله، د ليکني په دوهمه يا وروستۍ برخه کښي پر دې خبره هم يو څه غوَر او دقت کوو، چي ايا د انګريزي «چالينج» مفهوم اصلاً د تؤرکي «چالش/ چاليش» يا پښتو «ننګول» په وسيله ادا کېداى سي که څنګه؟

د انګريزي ژبي «چالينج» خورا ډېري ماناوي لري، چي نه يې د ايرانيانو تؤرکي الاصله «چالش/ چاليش» او نه يې د زيار صاب او ملګرو «ننګول»، د ټولو ماناوو او مفاهيمو ادا‌ينه کولاى سي. دلته د انګريزي ژبي د ډېرو معتبرو قاموسو په حواله د «چالينج» ځيني عامي او مروجي ماناوي را نقلوو، چي زموږ پوه او دراک لوستونکي يې د ايرانيانو له «چالش/ چاليش» او د زيار صاب او ملګرو له «ننګول» سره پرتله کي:

۱- په سيالۍ، مقابله يا جنګ کښي د برخي اخيستني دپاره و چا ته بلنه ورکول؛ لکه:

Ahmad challenged Mahmud to a match, battle, duel etc.

۲- د مقابلې او سيالۍ په مانا؛ لکه:

That's a tough challenge.

۳- د مخالفت يا بې پروايۍ په مانا؛ لکه:

He challenged the governor's authority.

۴- يوې خبري، نظريې، پرېکړي يا ادعا ته د شک او ترديد په سترګه کتل؛ مخالف ور سره ښووَل؛ او له مقابل لوري څخه د توضيح، تفسير يا زباتولو غوښتنه کول؛ لکه:

I challenged his extremely controversial theory of federal government in Afghanistan.

۵- په حقوقي مؤضوعاتؤ کښي د يوې مسألې يا پرېکړي په وړاندي رسمي شکايت او اعتراض؛ لکه:

I challenged his decision in the court of law.

۶- په حقوقو کښي د منصفه هيأت يا په منصفه هيأت کښي د يوه ځانګړي شخص د احتمالي شاملولو پر ضد د رسمي اعتراض او احتجاج په مانا؛ لکه:

Ahmad's prospective inclusion in the jury was challenged by the high court judge.

۷- په انتخاباتي مؤضوعاتو کښي د رايي

د بطلان یا د رایي ورکوونکي د نااهلۍ او بې واکۍ د بیان دپاره؛ لکه:

David's vote was challenged.

یا:

David was disqualified by the borough's election officer.

۸- په عسکري اصطلاح، د سمي او دقیقي پېژندنې په مخسد د یوې قطعې، مؤسسې یا اداري د ساتونکو یا نورو گومارل سوو کسانو له خوا د چا دَرَول او پوښتنه گرویږنه؛ لکه:

Tom was challenged by the guard/ receptionist.

۹- د سخت، مُشکل او ستونزمن په مانا؛ لکه:

It's a challenging job.

۱۰- د هغه سخت او مشکل کار په مانا، چي له چا څخه د زیات کوښښ، وړتیا او ذمه وارۍ غوښتنه کیي؛ لکه:

The job is full of challenges.

یا:

That job challenges your imagination and ingenuity.

۱۱- په طب، خاصتاً معافیت پوهنه (Immunology) کښي د چا د جسمي جوړتیا او معافیت مالومولو دپاره د خاص مایکرواورگانیزم یا انتي جین پېچکاري کول.

Some athletes were challenged by Olympic authorities.

په دې ترتیب گورو، چي «چالینج» په انگرېزي کښي د سیالۍ او مقابلې؛ و سیالۍ، مقابلې یا جنگ ته د ور بللو؛ پارولو (لمسولو)؛ سخت، گران، ستونزمن؛ مخالفت کولو؛ ردولو؛ ځان پېژندلو؛ جوړتیا او معافیت مالومولو؛ اعتراض کولو او داسي نورو مانا استعمالېږي. ایرانیان او زموږ پښتنه گر ژورنالیستان او لیکوال (دري ژبي او پښتانه) یې یوازي د سخت، مشکل، گران او ستونزمن په مانا کاریي؛ مثلاً وایي: «حملات انتحاری، دولت را با چالش های امنیتی مواجه ساخته است.» یا وایي: «در شرایط خروج نیروهای امریکایی چالش های زیادی پیش رو خواهیم داشت.» پښتو پښتنه گران وایي: «ځانمرگو بریدونو دولت له امنیتي ننگونو سره مخامخ کړئ دئ.» یا «د امریکایي ځواکونو د وتلو په شرایطو کښي به له زیاتو ننگونو سره مخامخ یو.»

زموږ محقق او سترگه ور لوستونکي گوري، چي «چالینج» په انگرېزي ژبه کښي څونه ډېري ماناوي لري؛ حال دا چي ایرانی کاکا یا پښتون لالا له هغو څخه یوازي یوه مانا را اخلي او هغه هم په داسي جوملو کښي کاریي، چي اساساً د دې مفاهیمو دپاره مأنوس او موزون نه گڼل کیږي. تاسي و گورئ د پارسي ژبي په درو معتبرو او مشهورو قاموسو لکه «لغتنامهٔ دهخدا»، «فرهنگ فارسی معین» او «فرهنگ فارسی عمید» کښي د «چالش/ چالیش» دوه بېل ټکي ثبت سوي دي، چي یو یې په نخرو، کِبر او غرور سره پر لاري تگ؛ او بل یې و جنگ و جدل، مبارزې، اخ و ډب او تلاښ ته وایي.

لکه څنگه چي گورو، په دغو ماناوو کښي یوه هم له هغي مانا سره اړخ نه لگیي، چي ایرانیان یې په خپلو روځینو خبرو کښي کاریي؛ مثلاً دی وایي: «دولت امریکا با چالش های تازه ای مواجه شده است.» څکه د پارسي

ژبې په دغو ارزښتناکو فرهنگو کښې خو د چالش د دې مانا هیڅ څرک نه لیدل کیږي. زیار صاب وایي: «د پلاني کتاب مي ور وننگوه.» دا جومله هم د میلیونو پښتنو د ژوندۍ او مُروّجي محاورې پر خلاف خبره ده؛ ځکه «د پلاني د کتاب ننگول» خو زموږ په اولسي محاورو او ادبي اثارو کښې د پلاني له کتاب ځخه د کومک یا مرستي غوښتلو مانا لري؛ په داسي حال کښې چي د ښاغلي زیار مخسد د کتاب له لیکوال یا مؤلف سره مخالفت یا اختلاف دئ. باید د خپلي دې نااشنا او نادودي جوملې پر ځای یې داسي ویلي وای: «د پلاني پر کتاب مي اِعتراض وکئ/ وکړ»، «د پلاني له کتاب سره مي مخالفت وکئ/ وکړ»، «د پلاني کتاب یا د پلاني نظر مي و نه مانه»، «د پلاني کتاب یا د پلاني نظر مي رد کئ/ کړ» او داسي نور. که له چا سره د سیالۍ او مسابقې خیال لرو یا د چا و ادعاوو ته د شک او تردید په سترگه گورو، هیځکله باید د «ننگول» یا «ننگونه» ټکي استعمال نه کو، بلکي پر ځای یې باید و وایو: «ټولو ته بلنه ور کوو، چي په دې سیالۍ یا مسابقه کښې زموږ سره برخه واخلي»؛ «ټولو ته بلنه ور کوو، چي خپلي ادعاوي ثابتي کي/ کړي»، «دا گز او دا میدان، را مخ ته سئ، چي څؤنه/څومره ټوپ وهلای سئ!» او داسي نور.

د انگرېزي او نورو مهذبو اؤروپایي یا غیراؤروپایي ژبو کمال په دې کښې دئ، چي نه هیځکله یوه کلیمه په بله وهي او نه د کلیمو یوه مانا د بلي پر ځای دریي. برعکس د ټولو کلیمو په روزنه او پالنه کښې یو راز کوښښ کیي؛ هره کلیمه او د هري کلیمې بېلي ماناوي پر خپل معین او مشخص ځای استعمالیي.

پاړسي او پښتو ژبي د «چالش» او «ننگول» پر ځای پرېمانه ټکي لري، چي کولای سي په ډېر فصاحت او بلاغت سره دا مفهومونه بیان کي؛ مگر زموږ «ژبپوهانو»، «لیکوالو» او ژورنالیستانو مشکل دا دئ، چي په پټو سترگو قلم چلوو. د ځېړني او پلټني پر ځای په پېښه گرۍ او جعلکارۍ پسي رهي یو. که ایرانیانو «چار/ چهار راه» را وایستله، زموږ پېښه گرو سمدلاسه په «ځلور لاره» ترجمه کړه. دې تې و نه کتل، چي زموږ په ژبه کښې خو د دې مخسد دپاره له سوو کلونو راهیسي د «چوک» ټکی استعمالیږي. څه موده مخکي مي د یوه مُقلِد او بې خبره کنداري ژورنالیست په لیکنه کښې هم د دې مُهلکي وبا اثر ولیدئ. زموږ د پلرو او نیکو تاریخي یادگار، د شهیدانو چوک، یې په «شهیدانو ځلور لاره» اړولئ ؤ. ایرانیانو په دې وروستیو وختو کښې د میټینگ یا غونډې دپاره و «نشست» ټکي ته ملا تړلې ده. زموږ پېښه گرو لغت تراشانو او لغت پرانانو هم د هو به هو ترجمې په دود، ځای پر ځای په «ناسته» ترجمه کئ؛ او دا دئ شپه و روځ لَوَلَؤ او اروو، چي په پلاني ځای کښې خبري ناسته، مطبوعاتي ناسته یا ادبي ناسته وسوه. کله چي دا ناسته وارووم، سمدلاسه مي د کنداریانو د ناستي هغه مانا را په یاد سي، چي له علمي او مطبوعاتي موضوعاتو سره یې یادونه د خندا وړ ده. زموږ و محققو لغتپوهانو او ادبپوهانو ته مالومه ده،

چي د پښتو په جنوب – لوېدیځه لهجه کښې «ناسته» په دوو جلا ماناوو پراخ استعمال لري. یو «ناسته» د کښېنستو په مانا ده، چي ټول پښتانه يې پېژني؛ لکه «ناسته ولاړه». بله «ناسته» د نس ناستي، اِسهال یا دستونو په مانا کارېږي؛ مثلاً کنداري ښځي وايي: «زوی مي پرله پسې ناستو ډېر کمزوری کړی دئ»؛ «زوی مي هره روځ نس ناسته کيږي» او داسي نور. پښتانه هیچیري «ناسته» د بانډار، غونډي، مجلس، محفل، جرګې، میټینګ او داسي نورو په مانا نه استعمالیي. زموږ خلګ خو وايي: په پلاني ځای کښې ادبي غونډه و سوه؛ په پلاني ځای کښې ادبي او هنري محفل جوړ سوئ و؛ په پلاني ځای کښې قومي جرګه و سوه؛ برايي مو له یارانو سره خوږ مجلس/ بانډار وکئ او داسي نور. کله چي په خپله ژبه کښې دوْنه اشنا او مُرَوَّج ټکي لرو، بیا نو د ایرانیانو د «ناستي» و بې مناسبته ټکي ته څه اړتیا پیدا کیږي؟! که ایرانیانو د انګرېزي ژبي هاټ واټر باټل(Hot water bottle) په «کیسهٔ آب گرم» وژباړه، دی پوهیږي او خپل کار يې. موږ ته هیڅکله نه ښايي، چي په ټټو سترګو د تودو یا ګرمو اوبو کڅوړه څني جوړه کو؛ ځکه موږ خو د انګرېزي ژبي د «هاټ واټر باټل» دپاره په دري او پښتو کښې لنډه، اسانه، ښکلې او اشنا کلیمه لرو، چي هغه «مشکوله» ده. د دغه راز کلیمو لیست ډېر اوږد دئ. که ګرده را ټولي سي، لوی کتاب څني جوړيږي.

وروستی خبره دا ده، چي موږ باید هیڅکله د نوو لغتو په جوړولو یا د نوو ماناوو په رواجولو کښې د خپلي ژبي نرخ و نوا له یاده و نباسو. که په خپلو کاغذو، القابو او عناوینو خانتما وو؛ او د اولس ژبې، دود او بایدې ته مو پام نه کاوه، بیا نو په ښه غوږ واروئ، چي له دې نیولوجیزم میولوجیزم څخه بې ګډوډې او بربادۍ بله هیڅ تمه نه سي کېدای!

***

**ماخذونه او یادښتونه:**

۱. د پوهاند صاب ډاکټر مجاور احمد زیار بشپړه لیکنه د دې لینک په کښېکښلو سره لوستلای سئ:
http://www.dawatfreemedia.org/index.php?mod=article&cat=%D۸%B۱%D۹%۸۸%D۸%A۷%D۹%۸۶%DB%۹۰%DA%۸۶%D۸%A۷%D۸%B۱%DB%۹۰&article=۳۵۹۸

۲. مرحوم مولوي صالح محمد هوتک، پښتو مثنوي (کابل: د پښتو د انکشاف او تقويې ریاست، د افغانستان اکادیمي، ۱۳۵۰)۳.

۳. ګران مطیع الله روهیال ته کوروداني وایم، چي د څینو نورو اثارو له ټایپ سوو نوْخسو سره يې د دې ناچاپ کتاب یوه کاپي هم له کندهاره را ایمیل کړه. نه پوهېږم، چي په دې وختو کښې ولي د پخوانۍ علمي – فرهنګي یاراني خوند نسته؟ خیر. باید دا خبره هېره نه کم، چي د دې فوکلوریک – تاریخي اثر (زوړ کندهار) په متن کښې خورا ډېري

ټایپي تېروتني سوي دي. کې چا د چاپ اهتمام کاوه باید پر ځینو ګټورو حاشیو او تعلیقاتو سربېره یې و دې اړخ ته هم ټینګ پام وکې.

۴. عبدالحی حبیبي، «اخوند پنجو او د دې ډلي کارونه په پښتو ادب کي،» کندهار۳(۱۳۴۱ش): ۱ – ۳.

۵. محمدهارون خپل شعشعي، «آغلې» که «ښاغلې»؟ لروبر، ۲۱/ ۲۰۱۲/۰۶:

http://www.larawbar.net/۳۲۳۱۷.html

٦. خوشال خان خټک، د خوشال خان خټک کلیات، د عبدالقیوم زاهد مشواني اوډنه، پرتلنه، سمون او وېپانګه (کابل : دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۴) ۳۹۷.

۷. د زیار صاب او ملګرو «ننګول» یاني په جعلي او خودساخته مانا د دې ټکي کارَوَل.

۸. د «چالینج» ځیني ماناوي مو له دغو معتبرو فرهنګو څخه اخیستي دي:

Mairi Robinson, Editor in chief, Chambers ۲۱st Century Dictionary (Edinburgh: Chambers, ۱۹۹٦).

Della Thomson , The Oxford Dictionary of Current English, ۹ th ed. (Oxford: Clarendon Press, ۱۹۹۵).

The American Heritage Dictionary of the English Language, Fourth Edition copyright ©۲۰۰۰ by Houghton Mifflin Company. Updated in ۲۰۰۹.

Collins English Dictionary – Complete and Unabridged ٦th Edition ۲۰۰۳. © William Collins Sons & Co. Ltd ۱۹۷۹, ۱۹۸٦ © HarperCollins Publishers ۱۹۹۱, ۱۹۹۴, ۱۹۹۸, ۲۰۰۰, ۲۰۰۳.

Random House Dictionary, © Random House, Inc. ۲۰۰۹.

۹. وګورئ په «لغتنامهٔ دهخدا»، «فرهنګ فارسی معین» او «فرهنګ فارسی عمید» کښي د «چالش» ماده:

http://www.vajehyab.com/amid/%DA٪٨٦٪D٨٪A٧٪D٩٪٨۴٪D٨٪B۴

***

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- ایا داسي زړه هم سته چي موسیقي دي ئې ویلي نه کړي؟
- د هر حکومت وړاندې د هغو اصولو د شوړېدو سره یو ځاي پیل کیږي چي حکومت د هغو پر بنسټ جوړ سوی دئ.
- بې عقل انسان د بد سلوک څخه خوند اخلي او په ښه چلند شرمېږي.
- هیڅ شی د بیري په اندازه د انسان څخه د عقل او عمل توان نه سي اخستلای.
- زه چي موسیقی ته غوږ نیسم داسي حالت راکوي لکه چي زما دیوازیتوب حجره یو دم په خلکو ډکه سي.
- په کال کي یو دوست په سختئ سره پیدا کېدای سي خو په یو ساعت کي په لسهاوو دوستان د لاسه ورکول کېدای سي.



ليکوال: استاد محمدمعصوم هوتک/کاناډا

# میوندۍ ملالې ته منسوبه لنډۍ



ملاله میوندۍ زموږ د ملي حماسي تاريخ يوه وياړلې څېره ده چې د نامه په اورېدو يا لوستلو سره ئې د چا ذهن ته هرومرو دا لنډۍ تداعي کېږي:

که په ميوندکې شهيد نه سوې
خدايږو لاليه بې ننګۍ ته دي ساتينه

د دې پېغلې له نامه سره تړلی متواتر روايت داسې دئ چې د کندهار د ميوند په تاريخي غزا کې (۱۸۸۰ع) پر افغاني لښکر باندې له يوې خوا د دښمن د عصري وسلو د ګوليو د باران او له بلې خوا د ميوند پر وچ ډاګ د جولای د مياشتې د سوځنده لمر او ګرمۍ له امله فشار زيات سو او شا ته تګ ته مجبور سول. د لښکر بيرغچي هم ټپي سوی او نزدې وو چې بيرغ ئې له لاسه ولوېږي. په دغه وخت کې د لښکر له منځه يوې پېغلې رامنډه کړه، بيرغ ئې د بيرغچي له لاسه واخيست، اوچت ئې ونياوه او پورتنۍ لنډۍ ئې وويله. د دې ملکوتي ږغ اغېزه دونده زياته وه چې لښکر هر څه هېر کړل او پر دښمن ئې په يوه سلا بريد وکړ او سوبه ئې روزي سوه. د دې روايت د صحت و سُقم په باب نظرونه چې هر راز وي، وي به، خو پرله پسې تواتر ئې د صحت پله ور درنوي. د ملالې قبر په ميوند کې معلوم دئ. ملاله د همدغه کلي اوسېدونکې او په قوم خوګانۍ وه. خوګاني د ابداليو پښتنو په پنځپای څانګه کي يو قوم دئ چې په ميوند کي ئې څو کوره له پخوا څخه ميشت ول. په دې شپو کي مې واورېدل چې د کندهار يوه خواخوږې اوسېدونکي حاجي حکمت الله ښادمن ئې د مقبرې ودانولو ته په خپل شخصي لګښت ملا تړلې ده. د دغه راز خواخوږو پر همت دې آفرين وي. کمۍ دې پاک خدای نه راوينې.

د پورتنۍ لنډۍ همدا يو شکل په کتابو کي ثبت دئ او د کابل په ميوند جاده کي د نومور کي سپاهي پر څلي باندي هم په همدې

بڼه ثبت وو. له نن څخه شاوخوا پنځوس کاله وړاندي د کندهار د اشوغې کلي یوه درانه مشر اروابناد سردار حاجي شاه محمدجان د میوند د تاریخي غزا د بیان په ترڅ کي دا لنډۍ په یو څه بدلون راته وویل او هغه داسي وه:

که په میوند کي شهید نه سوې
خودبنکه لالیه بې ننگۍ ته دي ساتینه

پر دې خبره اوس څه باندي پنځوس کاله تېر سوي دي، خو ثبت ئې زما په ذهن کي داسي راته ښکاري، لکه پرون چي مي اورېدلې وي. اروابناد سردار حاجي شاه محمد جان د سردار سلطان محمد خان زوی، د سردار منوردل خان لمسی او د سردار مهردل خان مشرقي کړوسی وو. شاعر او په فارسي ادبیاتو کي د مطالعې څښتن وو. کورنۍ ئې ټول درانه پښتانه او د علم و ادب څښتنان ول. زامن او لمسیان ئې زیاتره په نیویارک کي اوسي. سردار صاحب د ښکار ډېر شوقي وو او ما (هوتک) ئې د ښکار د ملگرتیا خورا ډېري خاطرې راسره ساتلي دي. د ده له خولې مي د میوند د تاریخي غزا په باب ډېر بیانونه اورېدلي دي. د سردار صاحب د استوگني کلی (اشوغه) د ارغنداو رود پر غاړه په هغه مسیر کي پروت دئ چي د میوند غزا له میدانه راتښتېدلو انگرېزانو ځانونه د کندهار ښار ته پر رسول. د ارغنداو پر دواړو غاړو د پرتو کلیو اوسېدونکو پر دغه مات لښکر باندي د قیامت ورځ راوستلې وه. سردار صاحب دا خبره راته کړې وه چي د ده د ښکار جاغوري توپک د ده پلار سردار سلطان محمدخان ته د دغي غزا پر وخت په لاس ورغلی وو. دا توپک ما (هوتک) لیدلی وو او د سردار صاحب کم عکس چي زما سره همدا اوس هم خوندي دئ، په هغه کي ئې همدا توپک پر زنگنو پروت دئ.

زه به په دې لیکنه کي ملالي ته په منسوبه لنډۍ کي د بدلون راوستلو پر ژبنۍ اړتیا وړغېږم. اول به د (خداېږو) کلمه او بیا به د (خودبنکه) لغت وڅېړم او وروسته به پر دې خبره روښا واچوم چي ولي په دغه لنډۍ کي د (خودبنکه) پر ځای (خداېږو) راغلی او عام سوی دئ؟

په پښتو ژبه کي د (ږو) ویی له قسمیه تورو څخه دئ. خوشحال خان خټک وایي:

د ښادمنو پــــــه خندا ږو
د غــــــــمجنو په ژړا ږو
د رندانــــــــو په رندیه
د شیخانــــــو په تقوا ږو
...............
چې دویمـــــه پکې نشته
د ریښتینو په رښــــــتیا ږو
په دا هومــــــره سوگندونه
صدهــــــزار ځله بیا بیا ږو
چې تر ځان په (پر) تامین یم
زه خــوشحال خټک په تا ږو

پر همدغه ردیف او قافیه یوه بله نهه بیتي غزل هم لري چي مطلع او مقطع ئې داسي دي:

راته مـــــه وایه په تا ږو
چې په تا نه ږو، په چا ږو؟
..............
یار خو ستا یــــم د چا نه یم
زه خوشحـــال ستا په لقا ږو

پیرمحمد کاکړ پر دغه قافیه یوه اووه بیتي غزل لري چي سر او پای ئې داسي دئ:

د ښه حسن پـــــه ځراغ ږو
د پتنگ د زړه پـــــه داغ ږو
...............
عشق بېخوده پیرمحمد کړ
د ســــاقي په ډک اياغ ږو

شمس الدین کاکړ چي د پیرمحمد کاکړ پر پله روانه شاعري کړې ده، هم پر دغه قافیه یوه غزل لري چي د پیل او پای بیتونه ئې دا دي:

ستا د مخ په ښــه آفتاب ږو
بیا د خط په تور سحاب ږو

..............

شمس الدين پر تا مين دئ

په څلور ســــــره کتاب ړو

مولوي عبدالغفار بريالی د همدې غزلو په اقتفاء يوه غزل لري چي په شکل کي ئې يو څه بدلون راوړی دئ. دی وايي:

ړو په ناز د دلــــــبرانو
ړو په آه د سوخته گانو
ړو په کبر د خــــوبانو
ړو په درد د بــــېدلانو

..............

ړو په مينه د يارانــــو
ړو د ړوب په کاکـړانو
په خندا د وصـالي ړو
په ژړا د بـــــريالي ړو

په دا واړو مي قسم دئ خپله ياره
که تر مرگه ستا له ميني سم بېزاره

له دې مثالو راوړلو څخه مي مطلب دا دئ چي د (ړو) ويی له اکوړې څخه تر کندهاره پرتو پښتنو کاراوه او د پښتو په ټولو لهجو کي عام لغت دئ.

د کندهار په لهجه کي (وي) هم د قسميه توري په توگه کارېږي. ښځمني چي خپلي مېلمني ته د يوې بلي شپې د پاته کېدلو ست کوي، نو ورته وايي "ستا دي وي که به دا يوه بله شپه هم نه راسره پاتېږې".

په فارسي ژبه کي (به) له قسميه تورو څخه دئ. خواجه حافظ شيرازي (۱۳۲۵-۱۳۸۸ع) په هغه غزل کي چي مطلع ئې (معاشران گره اززلف يار باز کنيد – شبی خوش است بدين وصلتش دراز کنيد) ده، وايي:

به جان دوست که غم پرده بر شماندرد
گـــــر اعتماد بر الطاف کار ساز کنيد

په دې بيت کي (به) قسميه توری دئ او (به جان دوست) يعني (زما دي په دوست قسم وي). له دوست څخه مراد آنحضرت صلی الله عليه وسلم دئ. د حافظ دېوان په ځينو چاپو کي د مطلع دوهم نيم بيتی داسي دئ:

"شبی خوش است بدين قصه اش دراز کنيد"

په عربي کي (واو) قسميه توری دئ. پاک خدای جل جلاله په قرآن عظيم الشان کي فرمايلي دي: وَالعَصرِانّ الانسانَ لَفِی خُسرٍ

يعني قسم مي دي په ماخيگر وي چي انسان په تاوان کي دئ.

د پښتو (ړو) قسميه ويی که له نورو کلمو سره راسي، معنا ئې دا ده چي په هماغه کلمه باندي قسم اخيستل سوی دئ. خدايړو = په خدای مي دي قسم وي. د پښتو ختيځي لهجې ويونکي د (ړ) فونيم په (گ) سره تلفظ کوي او همدغه سبب دئ چي ارواښاد وزير محمدگل خان مومند (۱۸۸۵ ـ ۱۹۷۳ع) په پښتو سيند کي "خدای گو" ثبت کړی دئ. د (ړ) فونيم وينگ چي هر راز وي، پروا نه لري خو د (خدايړو) ليکلې بڼه بايد په (ړ) سره وي، نه په (گ) سره.

سيد راحت الله زاخيلي (۱۸۸۴-۱۹۶۳ع) په لغات افغاني کي (ړو) لغت راوړی دئ او معنا ئې "يه ايک قسميه لفظ هې" ورته کښلې ده. ميا بهادرشاه ظفر کاکاخېل په ظفراللغات کي (ړو) ويی په همدې معنا اخيستی دئ او "کلمه قسم، ..." ورته کښلي دي، خو دا ئې هم پر زياته کړې ده چي اکثره د (گو) په شکل تلفظ کېږي.

په ختيځپوهانو کي ما ته په هندوستان کي د ژېړبدلي برتانوي طبي افسر هنري والټر بيليو (۱۸۳۴- ۱۸۹۲ع) پښتو (پختو) ډيکشنري معلومه ده چي (ړو) ويی ئې د سوگند (By God!) په معنا ثبت کړی دئ.

د (خدايړو) ويی ما ته نوې جوړونه ايسي چي وروسته عامه سوې ده او دليل مي دا دئ چي تر پښتو سيند (چاپ ـ ۱۳۱۶ش = ۱۹۳۷ع) پخوا نورو قاموسو ثبت کړی نه دئ.

* * *

په لوېديځه لهجه کي (خودښکه) هم د قسم او سوگند پر وخت کارېږي. "خودښکه که

ئې درکم" یعنی قسم دئ چې در به ئې نه کم. دا کلمه د وزیر محمدگل خان په پښتو سیند (چاپ ۱۳۱٦ش) کې تر (خدایگو) وروسته سمدستي د (خدښکه) په شکل راغلې ده، خو د معنا پر ځای ئې ورته کښلي دي چې: "مردم قندهار به صورت غلط استعمال کنند. به لغت (خدازده) مرجعت". خدازده لغت ته ئې کښلي دي چې "در اصل (د خدای زده) بود یعنی خدا میداند، بسبب کثرت استعمال چنین شده. برای اظهار شک و اشتباه استعمال میگردد". له دې توضیح ځخه ښکاري چې د پښتو سیند د لیکوال په نظر (خدښکه) هم د (شک و اشتباه) له پاره ویل کېږي، خو (خدښکه، خودښکه) ما هیڅوخت د شک او اشتباه له پاره د چا له خولې اورېدلی نه دئ. کله چې د پښتو سیند تر خپرېدو څلور کاله وروسته (لس زره پښتو لغتونه) قاموس د اروابناد محمداعظم ایازي (۱۸۷۸_۱۹۵۷ع) له خوا په کابل کې خپور سو، هورې ئې بې له دې چې د پښتو سیند یادونه وسي، د خودښکه لغت ته ئې د هغه اصلي معنا "کلمه قسم" وکښله. تر لس زره پښتو لغتونه وروسته پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس هم (خودښکه) لغت راوړی دئ خو معنا ئې بیا هم ور اړولې ده او "اې خدایه! ، لویه خدایه!" کښلې ده. اروابناد قلندر مومند (۱۹۳۰ـ ۲۰۰۳ع) په خپل مغتنم قاموس (دریاب) کې د خودښکه لغت ثبت کړی دئ او د معنا په برخه کې ئې د پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس پر پله پښه ایښې ده او "اې خدایه!، لویه خدایه!" ئې ورته کښلي دي. د سید راحت الله زاخیلي لغات افغاني او د میابهادر شاه ظفر کاکاخېل ظفراللغات (خودښکه) لغت نه دئ ثبت کړی.

د خودښکه لغت د نه عامېدني ژبنی سبب دا دئ چې د زیاترو پښتو لهجو ویونکي د ښین په تلفظ کې ستونزي لري او (خ) ته نزدې یا کټ مټ د (خ) په شان ئې تلفظ کوي. له ښین سره ستونزه هغه وخت لا زیاتېږي چې له (خ) سره په مجاورت کې راسي. د دوو (خ) گانو تلفظ د ځینو پښتنو له پاره ستونزمن دئ. همدا سبب دئ چې زموږ په لیکنو کې ان نن ورځ لا هم د (ښخ) ویی کله په همدې شکل، کله د (خښ) په ډول او کله کله د (خخ) په بڼه لیکل کېږي. ځو ورځې پخوا مې په تاند ویبپاڼه کې د خوشحال خان خټک یو بیت په دې شکل ولید:

پش تېښه ماته کا، آئینه سازه کا
چې تر تېښې نه ښــــه آئینه ده

چې سمه بڼه ئې زما یقین دئ چې داسې ده:

پښ تېشه ماته کا، آئینه سازه کا
چې تر تېشې نه ښــــه آئینه ده

د لیکنې دغه ځو ډوله والی د ښین فونیم له وینگ ځخه راپیداسوې ژبنۍ پدیده ده. په (خودښکه) کې هم د (خ) او (ښ) اوازونه په داسې موقعیت کې راغلي دي چې په وینگ کې یو او بل سره تخریشوي، په تېره بیا چې یو بل قریب المخرج توری (کاف) هم ځرمه ورسره راغلی دئ. (خودخکه) تلفظ رشتیا هم د ځینو لهجو ویونکو ته بېخونده او درونډ تمامېږي. له دغې بېخونده درونډوالي سره چې بیا په پښتو سیند کې د راغلي "غلط توب" حکم هم یو ځای سي، ځرگنده خبره ده چې د عامېدلو لار ئې په ټپه ورتړي.

د ملالي لنډۍ او ورسره تړلې روایت په اولس کې د میوند غزا له وخته موجود وو، خو د لنډۍ د ثبت زمانه ئې اوږد تاریخ نه لري. په لنډۍ کې د (خودښکه) کلمې پر ځای د (خدایږو) کلمه هم له ښین فونیم ځخه د را پیدا سوو ستونزو له اسیته ځای سوې او عامه سوې ده. په لنډۍ کې د (خدایږو) کلمې بیا د ځینو شکاکانو له پاره د شخوند ښه پوره مواد برابر کړي دي.

آشاوا ـ انټاریو ـ کاناډا
۲۴مه داکتوبر ۲۰۱۴ع

# زموږ څېړونکي څه وايي؟

"زه پخپله په هيڅ ډول په تاريخ کي تر غاښ لاندي خبرو او ليکنو سره موافق نه يم.
زه په دې عقيده يم چي قوم ته بايد رښتيا وويل سي او رښتيا ويل قام ته هيڅ وخت
نه تاوان پېښ کړی او نه ئې پېښوي" **(استاد جهاني)**

**د استاد جهاني سره مو حاضره مرکه په ليکلې بڼه کړېده. په دې مرکه کي ډېر داسي ټکي سته چي د لوستونکو د معلوماتو ذخيره نوره هم قوي کوي. خو دا چي استاد راڅخه ليري دئ، و مو نه سوای کولای چي ځيني سوالونه يو څه نور هم وشنو. په هر صورت، دا يوه نوې لړۍ ده، چي د کندهار مجلې په راتلونکو ګڼو کي به پسي تعقيب سي. له لوستونکو څخه هيله لرو چي په دې اړه خپل تعميري نظريات راڅخه و نه سپموی. (م. روهيال)**

**روهيال:** تر هر څه لومړی غواړم د تحقيق يا research په باب معلومات راکئ!

**استاد جهاني:** د تحقيق او ريسرچ به باب بايد لومړی خبره دا درته وکړم چي زه په خپله زياتره د هغو موضوعاتو په باره کي پلټنه کوم چي يا څېړنه نه وي پکښي سوې او يا ابهام او د نظر اختلاف پکښي موجود وي او د ځوانانو او نورو څېړونکو له پاره هم دا لازمه بولم چي د تحقيق په وخت کي پر تکراري مسايلو باندي له څېړني څخه يو څه ځان وژغوري ځکه چي لوستونکی ئې بنايي د لوستلو حوصله و نه لري او دمخه تر هغه چي د تحقيق کوونکي خواريو او زحمت کښيو ته متوجه سي خپله توجه بلې خواته واړوي او د کتاب يا مقالې د لوستلو څخه ډډه وکړي.

د څېړونکي سره دا سوال حل دئ چي د څه شي په باره کي څېړنه کوي او خپلو لوستونکو ته څه ورکوي. نو د مضمون په باره کي د څېړني د پيل کولو څخه مخکي بايد وګوري چي د استفادې له پاره کومو موادو، آثارو او کتابونو ته اړتيا لري ايا لازم او کافي يا کافي ته نژدې مواد لري او يا ئې پيدا کولای سي کنه؟ وروسته دي نو د خپله وسه سره سم تحقيق پيل کړي او کوښښ دي وکړي چي د

هر مؤرخ، لیکوال او استاد لیکنې ته د شک او تردید په سترګه وګوري او که وکړای سي هر ریفرینس او یادښت ئې د اصلي مأخذ سره مقایسه کړي. هیڅا ته د تقدس په صفت قایل نه سي. ټول استادان او لیکوالان انسانان دي او ښایي د خاصې دلچسپۍ او خاصو شرایطو سره سم ئې لیکنې او قضاوتونه کړي وي. د دې معنی دا نه ده چې موږ هغوی ته د انتقاد او اعتراض ګوته نیسو بلکې، د یوه ریښتیني څېړونکي په حیث، تر خپله وسه پوري کوښښ کوو چې خپلو لوستونکو ته تر هر څا بهتر او پر لاري او حقایقو برابر معلومات ورکړو.

**روهیال:** زه به د موضوع د روښانه کولو له پاره هغه محققین پر دوو برخو ووېشم چې د افغانستان په باب ئې څېړنې او تحقیقات کړي دي. لومړی افغاني محققین او څېړونکي چې د افغانانو د تاریخ، ادب او فرهنګ په اړه ئې تحقیقات کړي دي دوهم مستشرقین او ختیځ پېژندونکي چې په یادو عرصو کې ئې کار کړی دئ. تاسې د دغو دوو ډلابېلو ګروپونو کارونه څنګه ارزوئ؟

**استاد جهاني:** افغاني محققینو په تېره بیا زموږ مشرانو، د وسایلو په منتهي کمبود کې، د افغانستان د خلکو د تاریخ او فرهنګ د روښانولو په تحقیقاتو کې د زړه ویني خوړلي دي. د هغو ټول کارونه او زحمتونه د قدر وړ دي. دا هغوی دي چې موږ ته ئې د نویو تحقیقاتو له پاره لاره پرانیستې ده او که نور هیڅ نه وي نو د هغو موادو سر ئې بلد کړي یو چې باید د خپلو تحقیقاتو په وخت کې ګټه ورڅخه واخلو. البته اوس عصر بدل دئ او غوښتني بدلي دي. لکه مخکې چې مې درته وویل که موږ د پخوانیو استادانو کارونه بشپړ او بې عیبه وبولو نو بیا خو د نویو تحقیقاتو د کولو له پاره ضرورت نه پیدا کېږي او باید چې د ترجمو او ادبي لیکنو خواوو ته مخه کړو. موږ باید د خپلو پخوانیو څېړونکو او استادانو لیکنو ته، که ضرورت وي، د انتقاد په نظر وګورو او د دې انتقاد څخه مو مطلب خپله فضل فروشي نه بلکې بیا هم د حقایقو روښانول او د ابهاماتو لیري کول وي. زه په دې برخه کې هیڅ ډول تقدس ته قایل نه یم. زه ټولو حېړونکو ته د انسان په سترګه ګورم او انسان نه له دلچسپیو څخه فارغ او نه له خطا خالي دئ.

پاته سو د مستشرقینو سوال. زه ویلای سم چې که مستشرقین نه وای د پښتنو د تاریخ ډېره زیاته برخه به تیاره پاته وای. علت ئې دا دئ چې پښتنو پخپله، ډېر وروسته، د خپل تاریخ په لیکلو بنا کړې ده. حتی ویلای سم چې په افغانستان کې د تاریخ، په تېره بیا د پښتنو د تاریخ، په باب تحقیقي کتابونه او لیکنې د شلمې پېړۍ له څلرمې لسیزې څخه وروسته ولیکل سول. خو د الفینسټون، دار مسټېټر، ډاکټر هینري بیلیو، میجر راورټي او... په څېر مستشرقینو خپلې لیکنې په اتلسمه او نونسمه پېړۍ کې بشپړې کړي وې او زموږ محققینو ګټه ورڅخه اخیستې ده، دا چې دغو مستشرقینو د علمي او تاریخي تحقیقاتو تر څنګ خپل استعماري اهداف هم درلودل په هغه کې به څوک شک و نه کړي

خو د دې تر څنګ ئې موږ ته هم علمي اطلاعات راکړي او داسي څېړني ئې کړي دي چي زموږ شرقیانو د څېړنو سره ډېر زیات توپیر لري او که نور هیڅ نه وي نو د تحقیقاتو طرز ورځخه زده کولای سو. هغوی د خپلو تحقیقاتو له پاره داسي مواد په اختیار کي درلودل چي زموږ محققینو ته نه په پخوا او نه په اوس وخت کي میسر دي. موږ د هغو متونو څخه چي دغو محققینو له نایابو کتابونو او اسنادو څخه نقل کړي دي ډېره ښه ګټه اخیستلای سو. البته څرنګه چي دا خلک د یوه بېګانه کلتور څخه راغلي کسان ول نو د راورتي او بیلیو په شمول چي پښتو او فارسي ژبي ئې ډېري ښې زده وې، د تاریخ لیکلو او د پښتني قومونو د کلتور د څېړلو په وخت کي ډېري لويي تېروتني کړي دي او یا ئې خپل قضاوتونه پر خپلو اټکلونو او ځیني لفظي تشابهاتو باندي بنا کړي دي چي موږ باید د څېړنو او تحقیقاتو په وخت کي توجه ورته وکړو. د مثال په ډول د میجر راورټي په څېر یو عالم د پښتنو ستر شاعر حمید ماشوخېل، د تېمورشاه د زمانې یو شاعر بولي او یا میرزا خان انصاري چي د شاه جهان په وخت کي په دکن کي شهید سوی دئ، د اورنګزیب په دربار کي له ملایانو سره مخامخ کوي. دغه ډول لوی اشتباهات تر اندازې زیات دي چي موږ باید د څېړنو په وخت کي خاصه توجه ورته وکړو. خو په لنډه توګه ویلای سو چي هم زموږ د پخواینو استادانو کار او زیار د ستایلو وړ دئ او هم د مستشرقینو له آثارو څخه ډېره زیاته ګټه اخیستلای سو.

**روهیال:** زموږ د هیواد او فرهنګ په ډېرو تاریخونو کي ځیني مسائل تر غابښ لاندي توضیح سوي دي، مانا له ډېره احتیاطه کار پکښي اخیستل سوی دئ، دغسي احتیاط چي د حقایقو روښانه کول تر سیوري لاندي کوي ستاسي په فکر څنګه کار دئ؟

**استاد جهاني:** زه پخپله په هیڅ ډول په تاریخ کي تر غابښ لاندي خبرو او لیکنو سره موافق نه یم. زه په دې عقیده یم چي قوم ته باید رشتیا وویل سي او رشتیا ویل قام ته هیڅ وخت نه تاوان پېښ کړی او نه ئې پېښوي. حقایق تر قیامته نه پټېږي او یوه ورځ زموږ راتلونکي نسلونه زموږ لیکني او قضاتونه له متونو سره مقایسه کوي او ځانونه په حقیقت خبروي. ښایي په هغه وخت کي زموږ د کار او زیار هیڅ ستاینه و نه کړي، او لا زیات اعتراضونه را باندي وکړي. ځکه چي د نوي موضوع په باب لیکنه تر هغه اسانه ده چي سړی یو ځل د یوې موضوع په باب غلطي لیکني رد کړي او د هغوی د ردولو لپاره په تاریخي متونو او اسنادو استناد وکړي او بیا نو خپل متن وړاندي کړي. ښایي ډېر کسان لا د نویو ځوانانو کارونه د تقدیر پر ځای تنقید کړي او علت به ئې یوازي دا وي چي په نوې لیکنه کي به د پخوانیو استادانو او څېړونکو لیکنه انتقاد سوې او ښایي رد سوې وي. زموږ ټولنه اوس هم عنعنوي ده او د خلکو ئې دا زړه ته نه لوېږي او دا نه سي منلای چي یو ځوان د سپین ږیري خبري رد او یا انتقاد کړای سي. نو ښه به دا وي چي موږ له لویه سره د خپلو مضامینو او کتابونو په لیکلو کي د حقایقو په

روښانولو کي له بشپړ احتیاط او رښتینتوب څخه کار واخلو. حقایق ښایي په اول او دوهم ځل پر غوږونو ښه و نه لګېږي خو وروسته غوږونه عادت ورسره پیدا کوي او نوی نسل خپل پلرونه او نیکونه ښه پېژني. د هغوی له اشتباهاتو څخه عبرتونه اخلي او ځانونو ته نوي لاري پیدا کوي. د تاریخ لیکلو اصلي هدف هم نوي نسل ته د لارو روښانول دي. هر څومره چي حقایق برالا او سپین وویل سي په هغه اندازه نوی نسل خپله لاره بهتره لیدلای سي.

**روهیال:** د پورتني سوال برعکس ځینو کسانو له ډېري بې احتیاطۍ څخه کار اخیستی دئ، او هر څه ئې د خپل ذوق مطابق څېړلي دي. ستاسي په فکر دغسي بې احتیاطۍ، د موضوعاتو سره سلیقوي برخورد او د څېړني له اصولو سرغړونه د یوه هیواد فرهنګ او تاریخ ته کوم تاوانونه متوجه کوي؟

**استاد جهاني:** د دې سوال په جواب کي باید درته ووایم چي د یوه قوم په باره کي د څېړنو او تحقیقاتو په وخت کي هر ډول جعل د غندني وړ دئ. لکه مخکي چي مي درته وویل چي جعل تر قیامته پوري پټ نه پاتېږي او کله چي نوي څېړونکي د هغو جعلیاتو د ردولو له پاره لیکني کوي نو هم د خپل قام د لیکوالانو له عکس العمل سره مخامخ کېږي او هم ښایي رقیب اولسونه او داخلي او خارجي دښمنان له نویو تحقیقاتو او د هغو په نتیجه کي د راولاړو سویو جنجالونو څخه بده استفاده وکړي او په نتیجه کي زموږ تاریخ او یا لږ ترلږه ډېره برخه جعلي وبولي. ګواکي جعل نه یوازي ګټه نه لري بلکي په یوه وخت کي ډېر لوی تاوانونه لري. که دغه راز جعلیات، چي له بده مرغه کم نه بلکي زیات دي یو وخت رسوا سي نو زموږ ځوان نسل هم د پخوانیو څېړونکو پر ټولو څېړنو او تحقیقاتو باندي بدګومانه کوي او سمي او رښتیني خبري او مستند تحقیقات به یې نه مني، او په هره برخه کي به له سره تحقیقات کوي. په علمي، فرهنګي او تاریخي تحقیقاتو کي درواغ ویل او په لوی لاس جعل کول نه یوازي د یوه قام او اولس له پاره په خدمت کي نه حسابل کېږي بلکي، په حقیقت کي، د یوه قام او اولس ریښې کاږي او حیثیت او اعتبار ته ئې صدمه رسوي.

زما سره چي هر چا د پښتو ادبیاتو د قدامت په باره کي بحث کړی دئ ما په زغرده ورته ویلي چي نوري خبري به پرېږدو د میرزا خان انصاري او خوشحال خان خټک په باره کي څه وایاست. موږ چي حمید او رحمن لرو، موږ چي شمس الدین کاکړ او حنان بارکزی لرو موږ له هر سیال سره سیالي کولای سو. که موږ مستند متنونه، کتیبې، کتابونه او تاریخي آثار و نه لرو یوازي د پنځه زره کلن تاریخ ادعاوي موږ ته نه یوازي څه راکولای نه سي بلکي د رقیبانو د خندا وړ مو ګرځوي. مرحوم عبدالحی حبیبي، چي د افغانانو د تاریخ په روښانولو او لیکنو کي ئې بېحده خوارۍ ایستلي او پښتانه ئې خصوصاً د کار او زیار پوروړي دي، د پښتو ادبیاتو د تاریخ په لومړي ټوک کي، میلاد څخه یو نیم زر کاله پخوا د آریایانو په تمدن کي، د پښتنو پاچاهانو څرک لګوي. مګر موږ ګورو چي په څوارلسمه او

پنځلسمه پېړۍ کې د پښتنو د مقتدرو لودي او سوري سلطانانو په دربارونو کې یا پښتو نه ویله کېږي او یا ئې موږ ته چا څرک په لاس نه دئ راکړی. موږ د سلطان بهلول لودي څخه نیولې بیا تر اسلام شاه سوري پورې د یوې کرښې پښتو مثال نه لرو. دا لا هلته پر پرده چې د سلطان سکندر لودي په څېر یوه غښتلي پښتون سلطان په وخت کې. مغول بابر په پکتیا و لوګر، باجوړ او د غلجیو د اوسېدنې په سیمو کې د پښتنو کله منارونه جوړوي او زموږ پښتون لودي سلطان په هند کې په خپلو فتوحاتو او اصلاحاتو لګیا دئ. نو موږ که تاریخ لیکو باید چې د هغو پښتنو تاریخ ولیکو چې د بابر، اکبر او نادرافشار له لښکرو سره ئې ډېرې وهلې او قربانۍ ئې ورکړي دي، نه د هغو سلطانانو چې هر څه ئې د خپلو خانونو له پاره کړي دي او که ئې اصلاحات راوستلي دي نو هم ئې ګټه هند ته رسېدلې ده.

**روهیال**: که موضوع یو څه مشخصه کو، او په ځانګړي ډول د پښتو ادبیاتو په باب وړغېږو، د پښتو ادبیاتو په ساحه کې سوي تحقیقات څنګه ارزوئ؟ په دې برخه کې که نوي تحقیقات کېږي اولیت باید کومو موضوعاتو ته ورکړه سي؟

**استاد جهاني**: ستاسي د دې سوال په جواب کې هم باید ووایم چې د پښتو ادبیاتو د تاریخ په برخه کې، که څه هم چې زموږ مشرانو کافي زحمتونه پر ځان وړي دي، خو کله کله ئې له بې احتیاطۍ څخه کار اخیستی دئ. مرحوم حبیبي صاحب په پښتانه شعراء کې آدم خان، فتح خان، موسی خان او نور فوکلوري قهرمانان، چې په ملي هینداره کې ئې نومونه راغلي دي په پښتنو شاعرانو کې شمېري. په داسي حال کې چې مرحوم حبیبي باید د معلومو پښتنو شاعرانو، چې دېوانونه ئې چاپ سوي دي د مثالونو په ورکولو بسیا سوی وای او ضرور نه وه چې هغه فوکلوري قهرمانان ئې چې یوازې په افسانو کې وجود لري او اشعار او نارې ئې هم د د لسهاوو کلونو په اوږدو کې نکلچیانو او اولسي خلکو ورجوړ کړي دي راوړي وای. د بلې خوا د هغوی له پاره لازمه وه چې د فتح خان، مومن خان او ظریف خان د نومونو او د نارو د یادولو سره ئې د پښتو ژبې د مشهور فوکلوریسټ محمدګل نوري، چې د کندهار سیمه ئې خصوصا پورورې ده، نوم قدر یاد کړی وای. ځکه چې مرحوم حبیبي یکې یوه داسي ناره د مثال په توګه نه ده راوړې چې هغه په ملي هینداره کې نه وي.

دغه راز مرحوم عبدالرؤف بېنوا د "پښتنې مېرمنې" په نوم کتاب کې د ملي هینداري د کتاب د فوکلوري نکلونو ښځینه قهرمانانې مابۍ، درخانۍ او نوري د پښتو ژبې د شاعرانو په لړ کې راوړي دي او لا ئې د سلطان شمس الدین التمش لور رضیه سلطانه، چې د یوه ترک لور او په اصل ترکه وه، په پښتو مېرمنو کې او حتی د ریګویدا د سرودونو ځیني ویونکي مثلاً مېرمن سوریا په پښتنو شاعرانو کې راوړې ده او د پښتنې مېرمنې په نوم کتاب کې، دغه راز مثالونه ښځې زیات دي.

سلطان بهلول ته پښتو رباعي منسوبه سوې ده. که هغه داسي شاعر وو چې في البديهه رباعیاني ئې ویلې نو باید چې نور شعرونه ئې هم درلوولي وي. د هغه نور شعرونه څه سول. څکه چې دی خو څه کم څلوېښت کاله د ډهلي سلطان وو او په سلهاوو کاتبان ئې په خدمت کي ول او که چیري سلطان د پښتو ژبې شاعر وو نو د هغه په عصر کي او د هغه په دربار کي د نورو پښتنو شاعرانو څرک ولي نه لګېږي. ایا د سلطان او د لودیانو د څه کم اتیا کلن قدرت له زمانې څخه موږ ته یوه پاڼه پښتو راپاته ده؟ موږ ئې څرک نه لرو. نو بیا به زموږ د ادعاوو له پاره ثبوت څه وي؟ پخوا چې هر څه لیکل سوي دي زه ګومان کوم چې د بېلو بېلو ضرورتونو پر اساس به لیکل سوي او تولید سوي وي خو که زموږ ادیبان نن ورځ تحقیقات کوي نو بایده دي چې هره جمله او هره خبره ئې پر مستندو آثارو او پاڼو باندي ولاړه وي.

**روهيال:** ځیني تحقیقات پر ریفرنس ډېره تکیه کوي، یا په اصطلاح د خپل تحقیق هري لیکي ته ماخذ لټوي، خو په ځینو کي بیا د ماخذ یادونه هم نه کېږي، بلکي داسي معلومېږي چې ټول تحقیق په لومړی ځل تر سره سوی دئ. د ماخذ ښوول څونه د تحقیق په ګټه خبره ده او نه ښوول ئې څونه بې اعتباره کوي؟

**استاد جهاني:** په دې اړه باید ووایم چې مأخذ ښودل په تحقیق او څېړنه کي تر هر څه مهم دي. د نن ورځي طالب العلمان شکاک دي او د هري خبري له پاره سند غواړي. د ناول لیکلو، ادبي نثرونو، شعرونو او تاریخي او علمي تحقیقاتو تر منځ توپیر په دغه کي دئ. په ادبي پارچو کي شاعر او لیکوال د خپل تخیل سره پاته دئ او چې څه ئې زړه غواړي هغه لیکلای سي. موږ یوازي د کمزوري او قوي لیکني او ښکلي او بیخونده شعر نوم ورباندي ایښودولای سو. نور نو له شاعر او لیکوال سره محاکمه نه لرو. خو که څوک د پاني پت یا اصفهان د جنګ او یا د میوند د جنګ په باب لیکنه کوي نو موږ ته باید ووایي چې د کوم سند په استناد لیکنه کوي څکه چې که داسي نه وي نو یو سړی به د میوند په جنګ کي د انګرېزانو تلفات پنځه ویشت زره او بل به ئې دوولس زره ښیي په داسي حال کي چې د میوند په جنګ کي د انګرېزانو ټول ټال دوه زره څلور سوه څو څلویښتو عسکرو برخه اخیستې وه. د پادشاهان متاخر افغانستان لیکوال د افغان او انګریز په لومړي جنګ کي د انګرېزانو تلفات یو لک و شل زره تنه ښیي، په داسي حال کي چې په هغه جنګ کي د انګرېزانو د پوځونو شمېر پنځلسو زرو ته نه رسېدی. البته تلفات د جنګونو په نتیجو کي کوم تغییر نه راولي مګر د جنګونو کیفیت او ماهیت ورڅخه څرګندېږي.

دغه راز د ریفرنس او ریفرنسونو په انتخابولو کي باید له احتیاط څخه کار واخیستل سي. که موږ، د مثال په توګه، پادشاهان متاخر افغانستان کي د تلفاتو په باره کي دغه راز یوه مبالغه وینو نو باید چې له هغه څخه د استفادې په وخت کي له احتیاط څخه کار واخلو. د بلې خوا کوښښ باید وکړو چې د

لومړی لاس مأخذونو څخه استفاده وکړو. مرحوم حبیبي صاحب یو لوی تاریخ پوه وو، موږ د هغه له آثارو څخه د مأخذ په توګه استفاده کولای سو خو که هغه آثار چې پخپله مرحوم حبیبي صاحب استفاده ورڅخه کړې ده نو دا تر هر څه بهتره ده. ځکه چې د ماخذونو څخه د استفادې په وخت کې هر لیکوال او مؤرخ خپل نظر او عقیده لري او ښایي یوه تکړه مؤرخ د یوه مأخذ د هغې برخې څخه چې د ده د مقصد سره مرسته کوي کار اخیستی وي په داسې حال کې چې که موږ هغه کتاب ته مراجعه وکړو ښایي د متن له بشپړ لوستلو څخه نور څه تر لاسه کړو. دغه راز طالب علمان باید شکاک وي او چې لومړي منابع تر لاسه کولای سي د دوهم لاس منابعو څخه تر وسه وسه استفاده و نه کړي او یا د مقایسې او انتقاد له پاره کار ورڅخه واخلي. مأخذونه چې هر څومره زیات وي، لیکنه چې هر څومره مستنده وي او مأخذونه چې هر څومره قوي وي لیکنه به په هغه اندازه قوي او د اعتبار وړ وي او تر ډېره وخته پورې د ژوندي پاته کېدلو امکان لري.

**روهیال:** تاسې د یوه محقق او لیکوال په توګه د افغاني ټولنې پر بېلابېلو موضوعاتو لیکنې او تحقیقات کړي دي، که د خپلو تحقیقاتو د کمیت په باب معلومات راکړئ، خوشحاله به سو.

**استاد جهاني:** ما د هرات پښتانه او ستره لوبه په نوم کتاب لیکلی دئ. نور ادبي او تاریخي تحقیقات مې د مضامینو په شکل دي او شمېر ئې تر دېرش اوړي. زه خپل ټول کوښښ کوم چې د داسې موضوع په باب تحقیقات وکړم چې تر اوسه پورې چا تحقیق نه وي پکښې کړی او یا موضوع او مسئلې ته داسې نیمګړې جوابونه ورکړل سوي وي چې زما قناعت نه سي حاصلولای. دغه راز تحقیقات که څه هم چې په زړه پورې وي خو ستونزې ئې زیاتې وي. یوه ستونزه ئې د هغو کسانو سره مخامخ کېدل دي چې تر وخته پورې په لیکلو متونو ئې قناعت کړی او د سرې د نوي نظر او لیکنې سره مخامخ کېږي. د کتابونو د لیکلو طرحې راسره دي خو تر اوسه مې دونه فرصت او مواد نه دي پیدا کړي چې خپلې طرحې عملي کړم. که خدای ژوند او صحت راکړ نو امید سته چې یو څه خو وکړم.

**روهیال:** ستاسې څېړنې او تحقیقات د نورو افغاني محققینو او څېړونکو له تتبعاتو سره جوت توپیر لري، دغه توپیر تاسې څونه د خپل تاریخ او راتلونکو نسلونو په ګټه کار بولې؟

**استاد جهاني:** دا چې زما لیکنې د نورو لیکوالو، په تېره بیا پخوانیو لیکوالانو یا بهتره ده ووایم پخوانیو خدمتګارانو د لیکنو سره توپیر لري، دا طبیعي خبره ده. زموږ تر منځ یو نسل فاصله راغلې ده او بل دا چې د هغو تاریخي حقایقو سپړلو ته چې زموږ مخکنیو زړه نه دئ ښه کړی ما یو څه په زړه ورتوب لاس ور اچولی دئ او له خپلو اینده څېړنو څخه مې هم دا تمه ده چې هر څونه حقایق خلکو ته ورکولای سي هغه و نه سپموي. رشتیا، که څه هم ډېر به ترخه وي، د قام او اولس کور نه ورانوي، بلکې د حقایقو پټول د

قومونو ريښې کاږي. قام په سترګو ړندوي، ځکه چي د قام او اولس ټول وګړي نه تاريخي آثارو ته لاس رسی لري، نه ئې د لوستلو توان لري او نه د هغو له لوستلو څخه لازمي نتيجې اخيستلای سي. ځوان نسل د خپلو پخوانيو سپين ږيرو او استادانو په اعتبار د هغوی ټولي ارزوني او تحقيقات په پټو سترګو مني او کله چي يو وخت له حقايقو سره مخامخ کړل سي دونه تلقين سوي وي چي حقيقت منلای نه سي. ځکه نو که تاريخي او علمي تحقيقات د قوم او اولس د بينا کولو له پاره هڅي وبولو د حقيقتونو، په لوی لاس پټول او تحريفول، د هغوی د ړندولو هڅه ده.

**روهيال:** اوس مهال په افغانستان کي هغه ډول علمي محيط نه دئ آماده لکه څنګه چي ښايي، نه لوی کتابتونونه سته او نه هم لاربښود استادان، په دغسي شرايطو کي تاسي ځوانو محققينو او څېړونکو ته څه توصيه کوی؟

**استاد جهاني:** ستاسي د دې سوال په جواب کی چي کتابتونونه نسته بايد ووايم چي خبره دونه خرابه هم نه ده. د افغانستان ټول لوی ښارونه په تېره بيا کابل او هرات له کتابو ډک دي. پاکستان او ايران، چي افغانان ډېر زيات تګ راتګ ورته کوي، له ګټورو کتابونو ډک دي. البته د تاريخ او علمي تحقيقاتو له پاره استادان او زوروري اکاډيمی به نه وي خو زموږ پخوانيو استادانو ته لار چا ښودله؟ زه ګومان کوم چي خبره د کتابونو د نسته والي نه بلکي د لوستلو د کلتور ده. زموږ ځوانان چنداني مطالعه نه کوي. زه ئې په فيسبوک کي ګورم. کله چي د پوهنځيو څخه د فارغو سويو کسانو او يا د پوهنتون د محصلينو املاء ګورم، چي بې مبالغې زموږ د زمانې د شپږم ټولګي تر هغې ټيټي وي نو مي زړه شين سي. املاء څوک چا ته نه سي ښودلای. دا د علاقې سوال دئ. املاء په مطالعه کي زده کېږي او له مطالعې سره علاقه نسته. هغه مضامين چي ما څو مياشتي کار ورباندي کړی وي کله کله تر شپږو اوو تنو زيات لوستونکي نه وي پيدا کړي مګر کله چي شعر يا غزل وليکم په يوه ګړي کي تر زرهاوو کسانو پوري رسېدلي او کامنټونه ئې اخيستي وي. موږ بايد داسي اثار ايجاد کړو چي لوستل ئې ځوانانو ته په زړه پوري وي او په هغوی کي د لوست کلتور ايجاد سي. نور کارونه پخپله کېږي. ځکه چي اوس ماشاءالله! زموږ ځوانان په خارجي ژبو هم پوهېږي او زموږ تر زمانې د مطالعې له پاره ښه مواد پيدا کولای او ګټه ور څخه اخيستلای سي.

***

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- عاشق مريی او معشوق بادار دئ. د بادار سترګي د هغه تر پښو او لاسونو ډېر کار کوي.
- وفاداره خلک د ميني د خوند په معنا پوهېږي او بې وفا خلک د هغې د تراژيدی په معنا پوهېږي.
- شنې سترګي وايي يا مينه راسره وکړه يا موږ مرو، توري سترګي وايی يا مينه راسره وکړه يا به دي مړ کړو.

نثار حمد آریا
د ژبو او ادبیاتو پوهنځي استاد

# د شهید پتیال په شعر کي عقیدوي پراډاکس

د شپاړسو، اوولسو کالو راهیسي د ادبیاتو په مطالعه باندي خپل ذوق خړوبوم. په دې اوږده موده کي مي په ملي او نړۍ واله کچه ډېري لنډي کیسې نالونه او نوري ادبي لیکني لوستي دي، خو شعر مي ډېر نه دئ لوستی. له شعر سره مي چنداني علاقه نسته. کله چي ځوانیمرګ پتیال شهید سو، نو ګران یار ښاغلي روهیال راته وویل: "د کندهار مجلې راتلونکې ګڼه شهید پتیال ته ځانګړې کوم، نو که دي یوه لیکنه وکړه". د شهید د حق د اداینې هڅې او د ګران یار غوښتني دې ته اړ ایستم، چي د ځوانیمرګ پتیال شاعري وګورم.

کله چي مي د شهید پتیال شعر ولوست، نو د شعر ځینو اړخونو ئې خوند راکی. د نوموړي په شعر کي عقیدوي پراډاکس (Paradox) یو له هغو اړخونو څخه وو، چي زما توجه ئې جلب کړه.

"پراډاکس (Paradox) د لاتیني ژبې د (Paradoxum) له کلمې څخه اخیستل سوې کلمه ده. دغه کلمه د (Para) یعني ضد، مخالف او (doxa) یعني رای، مفکوره له کلیمو څخه ترکیب سوې ده. د پراډاکس له پاره په پښتو او دري ژبه کي د تناقض کلمه مناسبه بلل کېږي. د بلاغت پوهني په اصطلاح کي دغه کلمه پر هغو خبرو اطلاقیږي، چي په ظاهره متناقضي او بې معنا وي، خو په اصل کي سمي او له ښکلا څخه برخمني وي".(۱م، ۱مخ). په بله وینا "پراډاکس هغو خبرو ته ویل کېږي، چي په ظاهره متناقضي وي، خو د دغه تناقض تر شا یو داسي حقیقت پټ وي، چي دغه تناقض له منځه وړي" (۲م، ۱۶۷مخ).

د شهید پتیال د شعر د مطالعې پر مهال له ځو داسي بیتونو سره مخ سوم، چي پراډوکسي ښایست او هنریت ئې درلود. د

نوموړي دغسي بیتونو ته ما د عقیدوي پراډاکس نوم ورکړ. د هغه ځوانیمرګ یو بیت داسي وو:

له محرابه بغاوت دئ له توبو توبه ګاري ده
د ګـناوو پر لار بانـدي تر ایمانه به ورځو
(۳م،۳۱مخ)

"د ګناوو پر لار تر ایمانه ورتلل" ډېر عجیبه متناقض حالت دئ. دغه تناقض له ډېر لوړ تخیله ډک دئ. زما په فکر دغه خیال د یو عادي شاعر تر وس وتلې خبره ده. دا داسي خیال دئ، چي د شاعر د کمال اوج ترې معلومیږي.

د پراداکس صنعت په اسلامي تصوف کي هم تر ستر ګو کېږي. "د صوفیانو او عارفانو په اصطلاح کي هغه متناقض کلام ته شطح ویل کېږي، چي یو صوفي یا عارف ئې د وجد په حال کي د شرعي خلاف له خولې راباسي. په دغه مسلک کي د شطحي ښه بېلګه د حسین بن منصور حلاج د "اناالحق" ناره ده (۲م، ۱٦۷مخ).

په پورتني بیت کي شهید پتیال له عقیدوي پراډاکس څخه کار اخیستی دئ. په دغه پراډاکس کي نوموړي د منصور پر پله قدم ایښی دئ او په داسي لار او طریقه ئې د خپل ایمان د تازه کولو هڅه کړې ده، چي د نورو له پاره خطر دئ. نور ئې تصور نه سي کولای. البته دا چي د ګناهونو پر لار څوک تر ایمانه نه سي ورتلای، نو له دې څخه څرګندیږي، چي شاعر برعکس خبره کوي او دغه کار ئې یوازي د هنریت په خاطر کړی دئ. په لاندي بیت کي هغه دغه لار لا پخه کوي:

د هوس څراغ به ساتو په سپېڅـلو روڼو تېلو
د مست خیال پر وزرونو تر سبحانه به ورځو
(۳م،۳۲مخ)

"د هوس څراغ په سپېڅلو روڼو تېلو بل ساتل" د دغه غزل یو بل هنري پراډاکسي مفهوم دئ. هوس هغه څراغ دئ، چي عموماً په ناپاکو تېلو بلېږي. همدا لامل دئ، چي زاهدان ئې روڼا ته نه کښېني او له دې څراغ څخه د ګوښه توب نارې وهي، خو شهید پتیال له دې څراغ څخه څغلي نه، هغه دغه څراغ ته پاک او سپېڅلې تېل وراچوي. هغه بل ساتي او له روڼا څخه ئې ګټه پورته کوي او په نتیجه کي ئې ځان تر خپل سبحانه رسوي.

یو بل بیت ئې داسي دئ:

ته دُرې مه راوړه دلته، ما د جام نُور کي لیدلي
چي کعبه وي چي طواف وي پر ایمان باندي راګرځم
(۳م، ۴۴مخ)

د پورتني بیت له مفهوم څخه په ظاهري ډول داسي څرګندیږي، چي شاعر په ډاګه د خپلې یوې ګناه یادونه کوي، خو زما په فکر اصلاً داسي نه ده. شاعر دغه کار یوازي د هنر د تقاضا له اسیته کړی دئ او په دې کار کي بریالی سوی هم دئ، ځکه د جام په نور کي پر کعبه او ایمان باندي طواف خورا خوندور پراډاکسي تصویر دئ. د دې غزل بل بیت داسي دئ:

له سرمستي میکدې مي دغه سُود کړله زاهده!
چي سبحان باندي راګرځم پر یزدان باندي راګرځم
(۳م، ۴۵مخ)

په دې بیت کي هم پورتنۍ خبره ده. البته د لا پخلي له پاره ئې باید ووایم، چي که

(خدای مه کړه) د شاعر باطن هم د هغه د ظاهر په شان وای، نو ښايي هغه هيڅکله هم پر کعبه، ايمان، سبحان او يزادان باندي د راګرځېدو يادونه کړې نه وای. له دې څخه داسي معلوميږي، چي نوموړي د دې هر څه ارمان او هيله لرله.

ځوانيمرګ پټيال په يو بل بيت کي وايي:

په ګـــــناهو کي ئې د عـمر ثوابونه ښخ دي
پټيال به ور نه سي هيڅ وخت د مُلاجان تر کوره
(۳م،۳۴مخ)

په پورته بيت کي شاعر د يوې بلې متناقضي ادعا يادونه کوي. نوموړی خپل ګناهونه ثوابونه ګڼي. زما په فکر دلته شاعر مُلا جان ته دا يادونه کوي، چي تا ته خو زما هرڅه ګناهونه ښکاري، خو داسي نه ده، بلکي زما په دغه ګناهونو کي هم ډېر ثوابونه پټ دي. توپير يوازي دونده دئ، چي تا خپل ظاهر ته ډېره توجه کړې ده او ما د ظاهر پر ځای خپل باطن جوړ کړی دئ.

د پراډاکس په اصطلاحي تعريف کي مو مخکي وويل، چي دغه ډول مفاهيم په لومړي سر کي خورا پوچ او بې معنا ښکاريږي، خو د دغه ظاهري تناقض تر شا يو حقيقت پټ وي. د کلام په دغه ظاهري تناقض کي پټه ښکلا او رمز لوستونکی يا اورېدونکی ځان ته جلبوي او د شاعر کلام ته هنريت ور کوي.

تېرو بيتونو او پر هغو بحث ته په کتو سره زه دا ويلای سم، چي شهيد پټيال د پراډاکس له صنعت څخه په خورا هنري ډول ګټه پورته کړې ده او په دې کار سره ئې نه يوازي دا چي د لوستونکي پام خپل شعر ته اړولی دئ، بلکي زما په نظر خپل کلام ئې د کمال داسي حد ته رسولی. چي له ښکلايزي فلسفي سره سر خوري.

دا ئې هم د ځوانيمرګ شهيد يو بل پراډاکسي بيت:

ماخوژوندد خُم پر څنډه او تاژوند خلوت کي تېر کړ
د حساب په ورځ به دواړه يو له بله سره ګورو
(۳م،۴۶مخ)

ماخذونه:


۱. حسن لی، کاووس (دکتر)
http://aryaadib.blogfa.com/post-
۲.داد، سيما، فرهنګ اصطلاحات ادبي، د انتشارات مرواريد چاپ، (۱۳۸۵) تهران.
۳. پټيال، عبدالقديم، انکار، د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ رياست چاپ، ۱۳۸۹ل کال، کندهار.


***

تولوونکی حاجي محمد رزمي:

## ګل خبري

- ژوند ځکه ښکلی دئ چي جبر دئ.
- مينه د اميد پر اوږو باندي ژوند کوي او په نا اميدی کي مړه کيږي يعني مينه هغه اور دئ چي په تېلو پسي ګرزي.
- کله چي پيسې خبري کوي حقيقت خاموش وي.
- بې ملګري انسان د هغه چا په شان دئ چي راسته لاس نه لري.

***



ليکوال : څېړندوی رفيع الله نيازي /ډيلي

# په اندو اروپايي کورنۍ کې د پاميري ژبو دريځ



مقدمه:

پاميري ژبې او ګرددونه زموږ د هيواد داسې لرغوني ژبې دي، چې په يوه کوچنۍ سيمه يعني پامير کې خپل ويونکي لري، خو د دې سيمې د نورو ژبو په څېر ډېرې اوڅارې او د ودې ځکه نه دي،چې له يوه اړخه ئې د ويونکو شمېر کم دئ او له بله اړخه ئې په اړه بشپړې څېړنې نه دي شوې. موږ په دې ليکنه کې په اندواروپايي کورنۍ کې د پاميري ژبو د ځای ځايګي، په پامير او څرمه سيمو کې ئې د ويونکو پر شمېر او مېشت ځايونو، د دغو ژبو او ګرددونو پر ډلبندۍ تته شان روڼا اچولې او په پای کې مو په تشريحي، خو په لنډ ډول له پښتو ژبې سره د پاميري ژبو پر ژبنيو اړيکو د يو شمېر باندنيو پوهانو له نظرياتو سره خپل خواله هم شريک کړي دي.

"اندو اروپايي کورنۍ" په ژبنيو کورنيو کې تر ټولو پراخه او ستره کورنۍ ده، چې د نړۍ د نژدې نيمو استوګنو مورنۍ ژبې ورپورې اړه لري او له پنځو لويو وچو څخه د اروپا، امريکا او استرليا اوسېدونکي يو مخيز، د اسيا ډېری اکثريت او همدا راز د افريقا يو پامور شمېر اوسېدونکي پرې غږيږي. "د اندواروپايي کورنۍ ژبې، لکه له نامه ئې چې څرګندېږي له هند څخه نيولې تر اروپا پورې غزېدلي او بېلابېلې ژبې ئې برخې دي. اندواروپايي کورنۍ په ټوله کې ۲۰۰ ژبې دي،

چې له ۲ میلیاردو ویونکو سره نږدې د نړۍ نیم نفوس جوړوي"(۱)

د "اندواروپایي کورنۍ" له ګڼو څانګو څخه یوه ئې ختیزه څانګه "اریک" ده، چې د "اري" او "اریایي" په نوم هم یادېږي. "اریک" په درېیو څانګو "اندو اریایي"، "داردیک" او "ارياني" وېشل شوې، چې په "اندو اریایي" کې ویدي سرودونه، سنسکریټ، پراکرېټ، هندي او د هندوستان ځیني نوري ژبې، په "داردیک" کې نورستاني، وایګلي، پشه يي، وټه پوري، کشمیري، بشکاریک او ځیني نوري ژبې شاملې دي او د "ارياني" څانګې ژبې بیا په ختیځو او لوېدیځو وېشل شوې، چې پامیري ژبې او ګړدودونه هم د ژبپوهانو له لوري د ځینو وضعه شوو معیارونو پر بنسټ د اوستا، ساکي، سغدي او پښتو ژبې تر څنګ د "اندواروپایي کورنۍ" د "اریک" ډلې د "ارياني" څانګې په شمال ختیزو ژبو پوري تړلې دي. د پامیري ژبو په نامه د دغو ژبو د نوموني لامل هم دا دئ، چې دا ژبې په پامیر سیمه کې د مېشتو وګړو ژبې یا لهجې دي. پامیر د غرونو د څوکو لمن یا د غرونو لمنې ته ویل کېږي. پامیر د اسیا په زړه کې هغه دنګې دنګې څوکې دي، چې د اسیا د لوړو غرونو د وصل سیمه بلل کیږي او دغلته د تیاشان التایي، قراقرم، همالیه او هندوکش غرونه سره نښلي. د لوړوالي له پلوه د دغو ټولو لړیو لوړه څوکه د دنیا د بام په نوم یادېږي. پامیر دوې برخې لري ختیځ یا لوی پامیر او لوېدیځ یا کوچنی پامیر. د پامیر دواړې برخې د سیاسي وېش له مخې د افغانستان، چین او تاجکستان تر منځ وېشل شوې دي "ختیځ پامیر د یو شمېر غرونو هغه لړۍ ده، چې له ۶۰۰ څخه تر ۷۰۰۰ مترو پوري لوړوالی لري او له ۱۵۰۰ څخه تر ۲۰۰۰ مترو د ژورو درو او خوړونو په واسطه له یو بل څخه جلا شوي دي، د غرونو دغه لړۍ په ځینو ځایونو کې لوړې څوکې لري، چې لوړوالی ئې ۷۰۰۰ مترو ته رسېږي"(۲).

د پامیري ژبو بېلابېل ګړدودونه نن سبا د افغانستان د بدخشان په پامیر او پامیر ته په څرمه سیمو، لکه په اشکاشم، واخان، شغنان او ځینو نورو درو، افغاني پامیر ته څرمه د تاجکستان په ځینو سیمو، د چین د سین کیانګ ولایت او د اوسني پاکستان په ګیلګیت او د جمو کشمیر په یو شمېر څندو کې ویونکې لري. که څه هم د پامیري ژبو د څېړنو تاریخ له یوې پېړۍ اوښتی، خو د دغو ژبو او ګړدودونو د ډلبندۍ په اړه پوهان سره په یوه خوله نه دي. د پامیري ژبو روسي څېړونکي یوسیف میخایلوویچ ارانسکي په خپل اثر "ایراني ژبې" کې د پامیري ګړدودونو تر سرلیک لاندې پامیري ژبې پر څلورو ډلو وېشلې، چې شغني یا شغناني، یزغلامي، اشکاشمي او وخي یادېږي، چې له دغو ژبو ځیني ئې سیمه ییز نور ګړدودونه هم لري، خو منجي یا منجاني او یغنابي ئې د بېلو ژبو په ډول راخیستي یعني د پامیري ژبو په ډلبندۍ کې ئې ورته ځای نه دی ورکړی(۳).

همدغه روسي ليکوال د خپل بل اثر "مقدمه فقه اللغه ايراني" په ۳۲۳ مخ کې په لړ توپير پاميري ژبي د (شوغناني – روشني، يزغلامي، اشکاشمي او وخني) په ډول ډلبندي کړي، خو گرېرسن د خپل اثر " The linguistic survey of India" د لسم ټوک په ۴۵۵ مخ کې شغني، سريکولي، زېباکي، اشکاشمي، سنگليچي، وخي، مونجاني، يدغه او يغنابي ژبې د پامير د کليو باندو ژبې بللي دي[۴].

زموږ د هېواد پياوړي څېړونکي ارواښاد دوست محمد دوست شينواري په خپل اثر "د افغانستان ژبې او توکمونه "کې د افغانستان د ژبو په اړه ارزښتمنه څېړنه کړې او پاميري ژبې ئې په اوو ډلو او ژبو کې سره په دې ډول ډلبندي کړي دي: (شوغناني او روشاني ژبې، اشکاشمي ژبه، واخاني ژبه، مونجاني ژبه، سوغدي او يغنوبي ژبې، خوارزمي ژبه او اوسيتي ژبه) ښايي ځينو نورو پوهانو چې پاميري ژبې ئې څېړلي، نوري ډلبندۍ هم وړاندې کړي وي، خو په افغانستان کې د پاميرو ژبو په اړه وروستۍ اکاډميکه څېړنه د اريانا دايره المعارف په دوهم ټوک کې راغلې او د ډلبندۍ له مخې ئې ټولي پاميري ژبې پر پنځو ډلو وېشلي، خو دلته هم لږ و ډېر د پخوانيو هغو په تقليد منجي، ونجي او يزغلامي ژبې د ډلبندۍ برخه نه، بلکې په پای کې د ځانگړو پاميري ژبو په توگه ترې يادونه شوې، نو ويلای شو پاميري ژبې هغسې چې ښايي لا هم په بشپړ ډول څېړل شوي نه دي، ځکه ئې پوهان د ډلبندۍ په اړه سره همغږي نه دي، خو په وروستيو افغاني څېړنو کې پاميري ژبې داسې ډلبندي شوي دي:

۱ – شغني – روشاني ډله، چې د سلو کورنيو په شاوخوا کې ويونکي لري او لاندې ژبې پکښې شاملې دي:

الف: شغني ياشغناني، چې په خاروغ ښار او د شغنان په شاوخوا، راشت کلا، برواز، د روشان سيمي د باجوپ کليو او باندو، په تاجکستان کې د شاه درې او غند درې په اوړدو او په افغانستان کې د پنج رود په لوېديځو غاړو کې ويل کېږي.

ب: روشاني (روشني يا روشناني) د پنج رود پر دواړو غاړو، په روشان سيمه، د شغني ژبو سيمو په گاونډ، د تاجکستان په خوف دره او د افغانستان د بدخشان په روشان سيمه کې ويونکي لري.

ج: برتنگي، د تاجکستان د روشان سيمي د برتنگ درې په اوږدو کې پرې خبري کېږي.

د: روشروي يا اوشري، په تاجکستان کې د برتنگي ژبو سيمو په شمال د مرغاب او گودره سيندونو په اوږدو کې ويل کېږي.

هـ: سريکولي (سريقولي)، د سريکول غرونو د لړۍ په ختيځ د چين په سين کيانگ ايالت کې له دربيو لهجو تاجقرغاني (تاشقورغاني)، چيني او برونکسالي سره دود ده او ويونکي لري.

۲ – یزغلامي، د تاجکستان په جنوب ختیځ د یزغلام رود په دره کي، چي د پنج رود د ښي اړخ یوه څانګه ده او درې زره ویونکي لري.

۳ – په اشکاشمي، زېباکي، سنګلیچي ډله کي دا ژبې شاملي دي:

الف : اشکاشمي، د تاجکستان جنوب ته په اشکاشم دره کي له ۲۰۰ ویونکو سره، خو زیاتره د افغانستان د اشکاشم اولسوالۍ په هغه سیمه کي چي د پنج رود شمال لور ته تاوېږي او په افغانستان کي د وردوج رود په سرچینو کي پرې خبري کېږي.

ب: زېباکي، د افغانستان په خاوره کي دننه د وردوج رود په سرچینو کي ویونکي لري.

ج: سنګلیچي، په سنګلېچ دره کي د وردوج رود په سرچینو کي ویل کېږي.

د: وخي یا واخاني په تاجکستان او افغانستان کي د پنج رود په شمالي مسیر د هندوکش او پامیر تر منځ د واخان په غاښي، همدارنګه د پاکستان د جمو او کشمیرایالت، چترال سیمه او د چین په سین کیانک ایالت کي ټول د نهو دېرشو زرو په شاوخوا کي ویونکي لري.

منجي ژبه په منجان اولسوالۍ، چي په منجان دره کي ده ویل کېږي، دا یوازینۍ پامیري ژبه ده، چي له افغانستانه دباندي ویونکي نه لري او یوازي په افغانستان کي دود ده. په پای کي باید د ونجي ژبي یادونه وشي، چي تر اوسنۍ پېړۍ د مخه ژوندۍ وه، خو نن ورځ د ونج درې اوسېدونکي تاجکي ژبي شوي دي. په قراتکین او درواز کي سره له دې چي دوده ژبه تاجکي ده، خو د جغرافیایي نومونو له مخي کېدای شي په دغو سیمو کي د پامیري ژبو د رواج د سابقې حکم وکړل شي. د ځینو پوهانو په عقیده یزغلامي ژبه د بدخشان ولایت د فیض اباد په ختیځ کي دود وه، خو نن سبا دغه ژبه له منځه تللې او خپل ځای ئې دري ته پرې ایښی دئ. په "اندو اروپایي کورنۍ" کي د ویونکو د شمېر او جغرافیایي موقیعت له مخي پامیري ژبي د دېرو کوچنیو اولسونو او د دېرو کوچنیو کوچنیو درو او ناوونو ژبېي دي. "په پامیریانو کي لوی اولس د شوغناني – روشاني ژبو ویونکي او واخنیان دي. د شوغناني – روشاني ژبو د ویونکو شمېر د څلوېښتو پنځوسو زرو په شاوخوا کي او د واخانیانو شمېر د پنځه ویشتو – دېرشو زرو په خواوشا کي دئ او په پاتو ټولو پامیري ژبو یوازي څلور څلورنیم زره کسان خبري کوي"[۵].

د پامیري ژبو د ویونکو په اړه یوسیف میخایلوویچ ارانسکي لیکي: "د هغو ټولو کسانو شمېر، چي په پامیري ګړدودونو خبري کوي له ۸۰ څخه تر ۹۰ زور پوري اټکل شوي، چي ۶۰ زره ئې په تاجکستان کي ژوند کوي"[۶].

وړاندي کاږي. چي: "د منجي او یدغا ژبي د ویونکو شمېر له ۲۰۰۰ څخه تر ۲۵۰۰ په حدودو کي دئ ... او د یغنابي ژبي د ټولو ویونکو شمېر نږدې ۳۰۰۰ نفره کېږي"[۷].

خو ارانسکي په خپل بل اثر "مقدمه فقه اللغه ایراني" کې کاږي، چې د پامیري ژبو د ویونکو شمېر اویا زره اټکل شوی، چې له دې ډلې ئې دېرش پنځه دېرش زره نفر په شوروي اتحاد کې ژوند کوي"[۸].

له شوروِي اتحاد څخه ئې موخه پخوانی شوروی اتحاد دئ، چې تاجکستان ئې یوه برخه وه. نوموړی د منجي ژبې د ویونکو شمېر د زر او یونیم زور په حدودو کې ښيي او د یدغه ژبې د ویونکو د شمېر په اړه وایي، چې نږدې زر نفره به پرې خبري کوي"[۹].

د پامیري ژبو او ګړدودونو د ویونکو د کره شمېر په برخه کې د پوهانو له بېلابېلو توپیري شمېرو څخه دا په جوت ډول څرګندېږي، چې لا هم د دغو ژبو د ویونکو د شمېر په اړه کره او منلې څېړنه نه ده شوې او همدا راز په پامیري ژبو کې د ژبې او ګړدود تر منځ د برید ټاکل نهایي شوي نه دي، ځکه چې په ځینو څېړنو او ډلبندیو کې یو شمېر پامیري ژبې د ژبو او ځیني نوري ئې ورته دګړدودونو په کتار کې راوستي او په ځینو نورو څېړنو کې بیا خبره اپوټه اوښتې. د وروستیو افغاني څېړنو له مخې، شغني، یزغلامي، اشکاشمي، زیباکي، سنګلیچي او منجي پامیري ژبې ګڼل شوي او شغناني، روشاني، برتنګي، روشروي یا روشري، سریکولي، تاشقرغاني، زیباکي، سنګلیچي او واخاني د پامیرو ژبو ګړدودونه بلل شوي، نو دلته وینو چې زیباکي او سنګلیچي د ډلبندۍ له مخې په یوه ډله کې ژبې ګڼل شوي، خو بیا په همدغه ډله کې

بېلابېل ګړدودنه ګڼل شوي، یعني د ژبې او ګړدود تر منځ د توپیر په برخه کې لا هم په پامیري ژبو کې نوو څېړنو ته اړتیا شته. په دې کې شک نشته، چې د ډېرو پامیري ژبو تر منځ ډېر توپیرونه شته، یعني د یوې ژبې ویونکي په بله پامیري ژبه نه پوهېږي "د وخي، اشکاشمي او په شغني – روشاني ګروپ کې د شاملو ژبو تر منځ توپیر دومره مهم دئ، چې د وخي ژبې یو نفر د یوه اشکاشمي ژبي نفر په خبرو نه پوهېږي او یو اشکاشمی ژبی د یوه شغني ژبي په ژبه نه پوهېږي"[۱۰].

د تیورۍ له مخې د ژبې او ګړدود (لهجې) تر منځ توپیر ډېر ساده دئ، ګړدودونه د یوې ژبې هغو سیمه ییزو بڼو ته ویل کېږي، چې د خپلو خاصو ځانګړنو پر بنسټ ئې له یو بل سره توپیر کېږي، خو دغه ځانګړني د یوې ژبې د بېلابېلو ګړدودونو د خبرو کوونکو تر منځ خنډ نه واقع کېږي، نو همدغه اصل ته په کتو سره ځیني پامیري ژبې، ژبې دي او نوري ئې د اړوندو پامیري ژبو سیمه ییز ګړدودنه دي. د پامیري ژبو د څېړني په برخه کې مهمه اوستره ستونزه دا هم ده، چې ټولي پامیري ژبې لیک نه لري، زما د څېړنو له مخې یوازي شوغناني او واخاني ژبو له پاره د لیک د رامنځته کېدو هڅې شوي، خو ګټوري پایلي ئې نه درلودې. د تاجکستان پامیریان په تاجکي ژبه او په سریلیک لیکدود، د سین کیانګ پامیریان په ایغوري ژبه او افغاني پامیریان په عربي لیکدود په پښتو او دري ژبه زده کړې کوي او همدغه ژبې د بېلو

ښلو پاميري ژبو ويونکو تر منځ د افادې او ګړهار ژبې هم دي، ځکه چي پخپله پاميري ژبې سره ډېر ليري دي او د يوې ژبې ويونکي د بلي ژبې له ويونکو سره په نورو ژبو نه پوهېږي.

د "اندو اروپايي کورنۍ" د "اريک" څانګي په "ارياني" ډلګۍ کي د ختيځو ژبو په کتار کي پاميري ژبې سربېره پر دې چي په خپلو کي سره د خپلوۍ ځيني اړيکي لري، يو شمېر پوهانو ئې له پښتو ژبې سره هم ځيني ژبنۍ اړيکې ښودلي دي. د پاميري ژبو ناروېژی متخصص ګيورګ مورګن ستيرنې د دغو ژبو سرچينه يوه نه ګڼي، دی ليکي: "د ټولو پاميري ژبو له پاره د واحد فونولوژيک سيستم پيداکول امکان نه لري، يوازي په څو فونيټيکي خصوصياتو کي دوی سره ګډون لري، په هغه کي هم دوی کله کله سره جلا او د نورو ژبو مثلاً له پښتو سره په يو کتار کي دريږي"(۱۱).

ښاغلي ډاکټر روان فرهادي د خپل استاد پروفيسور مورګن ستيرنې ځيني ناچاپ يادښتونه تر لاسه کړي ول او بيا ئې د خپل اثر او ژباړه "تاريخ تلفظ و صرف پشتو" په لومړي جلد کي د (تخليص و تکلمه ) تر سرليک لاندي خپاره کړي، دغلته راغلي چي، له پاميري ژبو په تېره له مونجي، بيدغا، سنګليچي او شوغني ژبو سره د پښتو نژدېوالی شته ... بلکي ورسره دا هم څرګندوي، چي پښتو له همدغه لرغوني ټاټوبي (پامير) څخه له يوې منځنۍ ساکي ژبې (ختني ساکي) سره اړيکه درلودلې ده"(۱۲).

د اروانښاد شاه عبدالله بدخشي د اته ژبيز قاموس په سريزه کي اروانښاد استاد ګل پاچا الفت د بدخشي په لاروۍ د لومړي پښتانه پوهاند په توګه د پښتو او پاميري ژبو تر منځ خپلوۍ ته ځير شوی او د هغې پخلی ئې کړی دئ. د افغانستان د ژبپوهني اتلس تر پروژې لاندي ډاکټر عبدالرازق پالوال د نوي ژبپوهني ځوان پښتون استازی وو، چي د شپېتمو زيږدي کلونو په سر کي ئې د يوه ګڼ شمېر پاميري ژبو ثبت تر سره کړ او ماه ګل سليمان دوست د لومړنۍ پښتنې په توګه پکي خپل برېليک په اتيايمه کي له شوروي څخه راوړ. په دې ورستيو کي يوه شغني ژبې ويونکي ښاغلي خوشنظر (پاميرزاد) په تاجکستان کي د اريانپوهني په برخه کي زده کړي کړي او د دوکتورا تيزس ئې "شغني ژبه" ده، ده هم د خپل اثر په يوه برخه کې د "قرابت زبان شغني و پشتو" تر سرليک لاندي څېړني کړي دي.

"او اوس اوس زموږ د هېواد يوه بل شوغني ژبې څېړونکي ښاغلي خيرمحمد حيدري د "دستور مقايسی زبانهای شغناني – روشانی و پښتو" تر سرليک لاندې د سرمحققۍ علمي رتبې له پاره خورا ستره څېړنه کړې، چي د دواړو ژبو صرف يعني مورفولوژي ئې له ډېرو نوو معلوماتو او موادو سره څېړلې او له شغنانې – پاميري ژبو سره ئې د پښتو ژبې نژدېوالی جوت کړی دئ. د ژبو تر منځ په نسلي رشتو ساتلو کي تر ټولو مهمه خبره صوتي او صرفي

مطابقت وي، له دې وروسته نحوي مطابقت یعني په فقرو او جملو کې د الفاظو ترتیب او تر تولو وروسته د الفاظو د ذخیرې مشابهت او مطابقت وي"(۱۳).

خو تر اوسه پورې یوه چا هم په هر اړخیز ډول، یعنې د صوتي، صرفي، نحوي مطابقت او د الفاظو د ترتیب له مخې له پښتو سره د پامیري ژبو کومه پرتله تر سره کړې نه ده، اوس هم له یوې پېړۍ راوروسته د مورګېن ستېرنې او نورو ختیځپوهانو څېړنې او بریاوې په دې برخه کې باوري ماخذونه ګڼل کېږي، خو دا په دې معنا نه ده، چې ګویا پښتو له پامیري ژبو یوه رابېله شوې ژبه ده، ځکه چې "له ځینو همرګیو پرته نه په غږ پوهه، نه په ګړپوهه (صرف) او نه هم په وییوکي سره دومره سمونونه لري، خو بیا هم کېدای شي، چې د پښتو لومړنی ټاټوبی د دغو پاسنیو نژدې خپلوانو پامیري ژبو له ټاټوبي سره جغرافیایي نژدېوالی درلودلی وي او بنایي د پښتو پخوانی ټاټوبی په داسې ځای کې تیکاو لرلی اوسي، چې یو خوا به د مونجي او ییدغا او بل خوا به د سنګلیچي او شوغني له ټاټوبي سره نژدې وو او په یوه مهال کې به له هغه ساکي ګړدود سره په تماس کې وو، چې د خوتني یا خوتني ساکي ژبي په نامه نومول شوی دئ"(۱۴).

وړاندیزونه:

پامیري ژبي زموږ د هېواد ستره فرهنګي زېرمه ده، دا د افغانستان نېکمرغي ده، چې په یوه کوچنۍ سیمه کې د دومره ژبو او ګړدودونو ویونکي لري، خو دا بیا ستره بدمرغي ده، چې لا تر اوسه موږ د خپل هېواد د ژبو په اړه هر اړخیزه څېړنه نه ده کړې. د دې له پاره، چې د پامیري ژبو له اوسني واقعیت او حقیقت څخه خبر شو، چې څومره ژبې، څومره ګړدودونه لري، د پامیري ژبو د ویونکو اوسنی شمېر څومره دئ، سیمه ییزو واکمنو ژبو پرې څومره اغېز ښندلی، کوم ګړدودونه او ژبې د له منځه تګ په حال کې دي او څنګه کولای شو د خپل هیواد دا ستره فرهنګي زېرمه له ورکېدا او له منځه تګ څخه وژغورو، نو اړوندو څېړنیزو بنسټونو او په ځانګړې ډول د افغانستان د علومو اکاډمۍ د ژبو او ادبیاتو مرکز ته بویه چې په دې برخه کې دا اړوندو ژبو نوي لوستي ویونکي په دندو وګوماري او بیا د همدغو ارو ویونکو په مرسته د پامیري ژبو په اړه هر اړخیزفلیډ ریسرچ یعني ساحوي څېړنه وشي، دا ژبې ثبت شي او په هر اړخیز ډول وڅېړل شي.

ماخذونه:


۱. میشل مالرب: مترجم: عفت ملانظر، زبانهاي مردم جهان، شرکت انتشارات علمي و فرهنګي، تهران، ۱۳۲۸ هـ ل ۲۵ مخ.
۲. اریانا دایره المعارف، دوهم ټوک، د افغانستان د علومو اکاډمۍ د دایره المعارف ریاست، ۱۳۸۷ هـ ل، ۳۳۲ مخ.
۳. زبانهاي ایراني، ژباړه: داکتر علي اشرف صادقي، انتشارات سخن،

چاپخانه مهارت، تهران، ۱۳۷۸ هـ ل، له ۱۴۹ څخه تر ۱۵۳ مخ پوري.
۴. اريانا دايره المعارف، دوهم ټوک، د افغانستان د علومو اکاډمۍ د دايره المعارف رياست ، ۱۳۸۷ هـ ل، ۳۳۴ مخ.
۵. دوست، دوست محمد: د افغانستان ژبي او توکمونه، پښتو ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۵۴ هـ ل، ۲۲۰-۲۲۱ مخونه.
۶. زبانهاي ايراني، ژباړه: داکتر علي اشرف صادقي، انتشارات سخن، چابخانه مهارت، تهران، ۱۳۷۸ هـ ل، ۱۴۹ مخ.
۷. زبانهاي ايراني، ژباړه: داکتر علي اشرف صادقي، انتشارات سخن، چابخانه مهارت، تهران، ۱۳۷۸ هـ ل، ۱۵۲-۱۵۳ مخونه.
۸. يوسيف. م . ارانسکي ، زباړه : کريم کشاورز، مقدمه فقه اللغه ايراني، انتشارات پيام، کتابخانه ملي ايران، تهران، ۱۳۷۹ هـل، ۳۲۲ مخ.
۹. يوسيف. م . ارانسکي، ژباړه: کريم کشاورز، مقدمه فقه اللغه ايراني، انتشارات پيام، کتابخانه ملي ايران، تهران، ۱۳۷۹ هـل، ۳۲۶ مخ.
۱۰. يوسيف. م. ارانسکي: زبانهاي ايراني، ژباړه: داکتر علي اشرف صادقي، انتشارات سخن، چاپخانه مهارت، تهران، ۱۳۷۸ هـل، له ۱۴۹ مخ څخه تر ۱۵۳ مخ پوري.
۱۱. دوست، دوست محمد: د افغانستان ژبي او توکمونه، پښتو ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۵۴ هـل، ۲۱۷ مخ.
۱۲. زيار، مجاور احمد: پښتو او پښتانه د ژبپوهني په رڼا کي، د ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز، پېښور، شينواري پرنټېنګ پريس، ۱۷۱ مخ.
۱۳. ګيان چند جين، عام لسانيات، قومي کونسل براي فروغ اردو زبان، نې دهلي، دوسرا اېډيشن،۲۰۰۳ ز کال، ۷۴۲ مخ.
۱۴. زيار، مجاور احمد: پښتو او پښتانه د ژبپوهني په رڼا کي، د ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز، پېښور، شينواري پرنټېنګ پريس، ۱۷۳ مخ.

***

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

**ګل خبري**

- مينه او جګړه يو شان دي؛ په دواړو کي د يو راز چلونو څخه کار اخستل کېږي.
- د هغي ښځي سره مينه کول چي تا توهينوي داسي کار دئ لکه څوک چي د توري څخه په ژبه عسل څټي.
- د دوو دوستانو له پاره د ستني سورى په کافي اندازه پراخ دئ خو ددوو دښمنانو لپاره ټوله نړۍ تنګه ده.


استاد عبدالباري جهاني/امريکا

# سیداحمد بریلوي او هندوستاني مجاهدین

دریمه برخه

**اخوند صاحب:**

د سوات د اخوند صاحب نوم په نونسمه پېړۍ کې، د پښتني قبایلو له شورشونو او تحریکونو سره په عمومي صورت او د هندوستاني مجاهدینو له تحریک سره په خاص ډول تړلی دئ؛ ځکه نو د هغه په باب یو څه رڼغږدل لازم دي.

اخوند صاحب، چې اصلي نوم ئې عبدالغفور دئ د اتلسمي پېړۍ په پای کې د سوات د جبرۍ په کلي کي زېږېدلی دئ. د هغه د وړوکوالي او ځوانۍ د لومړیو کلونوپه باره کې نور معلومات نسته خو دونه پوهېږو چې هغه په وړوکوالي کې غواوي او غوایي څرول او ډېر لیکوالان ئې د ګوجرو قبیلې ته منسوبوي. د وړوکوالي څخه په پرهېز او پاکۍ مشهور وو او غواوي او مېښي به ئې د خلکو په مځکو کې څرېدلو ته نه پرېښوولې او د هغو غواوو او مېښو د شیدو له چښلو څخه به ئې پرهېز کاوه چې د ده په اند په پردیو مځکو کې څرېدلي وې. د اته لس کلنۍ څخه ئې د دنیا کارونو ته شا کړه او د دیني درسونو د تعقیبولو تر څنګ د یوه کامل پیر په لټه کې سو. د تصوف په طریقو کې ئې نقشبندیه انتخاب کړه او د اټک د قلا څخه پورته ئې د بیکا په وادي کې په ذکر او د خلکو څخه په ګوښه کېدلو پیل وکړ. دوولس کاله ئې له خلکو څخه جلا ژوند وکړ او زیاتره به ئې په وښو او ایړدنو ګوزاره کوله. په وروسته کې ئې د اوبو پر ځای شیدې چښلې او د عمر تر پایه، یعني دري اتیا یا څلور اتیا کلنۍ پوري ئې ساده خوړل او ساده اغوستل. له خلکو څخه د جلا ژوند کولو او له سهاره ترماښامه عبادت کولو په ترځ کې ئې شهرت په ټولو پښتني سیمو کې خپور سو او له

هري خوا خلک وربانديي را مات سول. پښتنو تر ديني عالمانو او پرهېزګارانو، ملنګانو، دروېشانو او پيرانو ته زياته عقيده درلوده او په ډېر لږ وخت کي ئې داخوند صاحب په باره کي د کرامتونو کيسې خپرې کړې.

ملک بابا، چي د يوه رقيب خان سره په جګړه کي ئې د کورنۍ ډېر زيات غړي او تقريباً ټوله شته له لاسه ورکړي وه د اخوند صاحب دربار ته ورغی. داخوند صاحب په لنګر کي ئې يو غويی حلال کړ او په لږه موده کي ئې هم رقيب خان له منځه يووړ او هم ئې خپله خاني او شتمني تر لاسه کړه. دې پيښې د اخوند صاحب اعتبار او نفوذ ډېر زيات کړ او هغه ته ئې نور هم دا توان ورکړ چي نور واړه خانان او مشران د خپلي خوښي تر بيرغ لاندي سره راټول او متحد کړي (Political Leadership p ٦٠).

اخوند صاحب له يوه ساده ګوجر څخه په ډېر لږ وخت کي پير جوړ کړ( Ibid p ١٠٠).

يوه سړي، چي له سوريې څخه ئې تر سوات پوري يوولس کاله سفر کړی وو، او په سيدو کي ئې ځان د اخوند صاحب دربار ته رسولی وو، له اخوند صاحب څخه وغوښتل چي په هغه ورځ ئې بيرته سوريې ته ورسوي؛ اخوند صاحب د سترګو په رپ کي بيرته سوريې ته ورساوه. Ibid p١٠١

داخوند صاحب په باره کي دا خبره ډېره مشهوره وه چي هر سهار ئې د لمانځه تر مصلی لاندي يوه ټاکلې اندازه پيسې پرتې وي او اخوند صاحب په هغو پيسو د خپل لنګر خرڅ خوراک برابروي او سبا ته نوري پيسې ورته راځي.

The Borderland and the Country p ١١۴

د هغه شهرت بالاخره دونه زيات سو چي په سيمه کي په غوث، چي په ولايت کي تر ټولو لوړ مقام دئ، مشهور سو.

زه بنده ډېر ګنه کار يم – په ګناه مختورن خوار يم
د نظر ستا اميدوار يم – د سوات غوث صمداني
د واحد د باغ بلبله – د حضرت د شرعي ګله
مرتبه دي شه ترتله – په هر چا شې فوقاني
په سيدو کښې يې مکان دئ
ډېر پرې فضل د رحمان دی
شور يې ګډ په درست جهان دئ
دين اسلام پرې روښاني
(هاروبهار: ٨۵)

اخوند صاحب د خپل دې شهرت څخه هم د خپل معنوي او مادي قدرت د زياتولو او هم د خپلو رقيبو پيرانو او مذهبي مشرانو د ځپلو له پاره کار اخيست. سيد جمال الدين افغاني د سوات د اخوند صاحب په باره کي وايي چي اخوند صاحب ته له ليري او نيژدو څخه مسافرين او زايرين راځي او د هر چا له حال او احوال سره سم ئې عزت کيږي. خانانو او مشرانو ته د هغوی له حيثيت او اعتبار سره سمه ډوډۍ ورکوله کېږي او غريبانو ته وچه ډوډۍ، پياز او شلومبې ورکوي. کله چي دی خبر سي چي د پښتنو په کوم ښار کي د کوم شيخ اعتبار زيات سوی او د شهرت اوازه ئې خپره سوې ده نو اخوند سمدستي پر هغه باندي د وهابي حکم کوي او د خلکو په زړونو کي نفرت ورته پيدا کوي. (تتمة البيان: ١٧١).

اخوند صاحب له خپل دغه نفوذ څخه د

سید احمد او د هغه د هندوستاني مجاهدینو پر ضد ډېر کار واخیست او د هندوستاني مجاهدینو د تحریک د ناکامۍ یو مهم عامل سو. اخوند صاحب په تېره بیا په ۱۸۵۷ کې د سید اکبرشاه د وفات څخه وروسته، چې د انګریزي استعمار ډېر کلک دښمن او د هندوستاني مجاهدینو ټینګ ملګری وو، د هندوستاني مجاهدینو پر ضد ډېر سخت اقدامات وکړل. ځیني انګرېزي جنرالان او لیکوالان خو په دې عقیده دي چې اخوند صاحب په سوات کې د روم د پوپ او د ساکسوني د مارتین لوتر په څېر نفوذ درلود، او په سیمه کې چې به پښتانه خانان او مشران له هر ډول مشکل سره مخامخ کېدل نو اخوند صاحب ته به ئې مراجعه کوله. خو د انګرېزانو له لیکنو څخه په ځرګنده ښکاري چې اخوند صاحب نه د سید اکبرشاه او نه د هندوستاني مجاهدینو په څېر له انګریزانو یا سیکهانو سره دښمني درلوده، بلکې تر ډېره ځایه پوري ئې خپل روحاني مشرتوب ساته او، د سولې په نوم ئې کله کله له انګریزانو سره ښې او پر ځای مرستې کولې. ایډورډ الیور Edward E. Oliver لیکي چې په ۱۸۴۷ کال کې اخوند د خپل نفوذ څخه ښه کار واخیست او د سوات خلک ئې پرې نه ښوول چې د بایي زیو له هغو یاغیانو سره مرسته وکړي چې زموږ پوځیان هغوی ته د سزا ورکولو له پاره ورغلي وه. په ۱۸۴۹ کې ئې د پالي خلک دې ته تشویق او وهڅول چې خپلې هغه ډلې منحلې کړې چې لاري به ئې نیولې او زموږ پر قواوو به ئې حملې کولې. کله چې په ۱۸۵۷ کال کې د پنځه پنځوسمي پیاده قوې یاغي سوي عسکر د نیکلسن له قوې څخه بېل سول او سوات ته ننوتل نو اخوند هغوی له سوات څخه وشړل او زموږ قواوو هغوی ټول ووژل. اولیور لیکي چې اخوند زموږ سره ټول وخت دوستانه سلوک درلود او سړی ویلای سي چې هغه یو هوښیار او دوراندېش سړی وو. یو یا دوه ځلي خو ئې هندوستاني توندروان ډېر سخت وځپل او هغوی ئې حتی کافران وبلل. دا چې اخوند ولي کله کله زموږ په مقابل کې جنګېدلی دئ علت ئې تر ډېره ځایه د قبایلو او خلکو فشار دئ چې اخوند د هغوی د غوښتنو منلو ته مجبور سوی دئ. دا داسي شرایط ول چې پښتنو خپلې ټولې قبایلي دښمنۍ او اختلافات شاته پرې ایښې او حتی ښځې هم زموږ په مقابل کې د جګړې میدان ته را وتلي وې او په داسي شرایطو کې که چیري اخوند زموږ سره له جنګ کولو څخه انکار کړی وای نو خپل ټول نفوذ ئې له لاسه ورکاوه. Across the Border p ۲۸۳

اخوند صاحب په سیدو کې د هستوګنې تر غوره کولو وروسته ډېر زیات کلونه له دنیایي کاروبار څخه ځان ګوښه کړ او زیاتره به ئې د سولې تبلیغ کاوه، او د قبایلو مشرانو او خلکو ته به ئې ویل چې د برتانیې له حکومت سره دوستانه اړیکي وساتي. The Borderland p ۱۱۵

په ۱۸۶۸ کال کې، چې د بونیر خلکو او قبایلي مشرانو هندوستاني توندروانو ته پناه ورکړه نو اخوند هغوی منع کړل او مجبور ئې کړل چې هندوستاني توندروان له خپلو سیمو

څخه وشړي. Report on the Tribes p ۷۵

په ۱۸۶۳ کال کي د امبالې د عملیاتو څخه وروسته، چي هم انګرېزانو او هم پښتنو ته درانه تلفات پکښي ورسېدل، او د هغو عملیاتو په پای کي د پښتنو قواوي سره وپاشل سوې او ما ته ئې وخوړه، اخوند په سیدو کي کښېناست او نور ئې چنداني په دنیایي کارونو کي لاس و نه واهه. د هغو عملیاتو څخه وروسته ئې د انګرېزانو ډېر خدمت وکړ او قبایلو ته به ئې تل ویل چي پر انګرېزانو باندي له حملو کولو څخه ځانونه وژغوري او که چیري هغوی د کوم خدمت غوښتنه ورڅخه وکړي نو ورته حاضر سي. البته اخوند ته د جنګونو په ترځ کي د انګرېزانو قدرت معلوم سوی وو او په دې پوهېدی چي قبایل د هغوی د پوځي زور سره مقاومت نه سي کولای بلکي خپل ځانونه او کلي تباه کوي. ibid p ۷۷

البته د اخوندصاحب لمسی، د سوات لومړی والي، میاګل شهزاده ادعا کوي چي اخوندصاحب په ژوند کي ځو ارمانونه درلودل چي په هغو کي په سوات او بونیر کي د اسلامي دولت جوړول او د برتانیې له واکمنی څخه د سرحدي سیمو ازادول شامل وه. Story of the Swat p ۵۷ میاګل ګل شهزاده وایي چي اخوند صاحب د عمر تر پایه پوري د انګرېزانو سره د غزا کولو نیت پرې نه ښود. هغه له انګرېزي قواوو سره د جنګ د پیل کولو له پاره تیاری نیاوه چي عمر ئې پای ته ورسیدی. میاګل شهزاده وایي چي د کابل امیر شېرعلي خان په ۱۸۷۶ کال کي هغه ته د جلال اباد والي احمد خان اسحق زی له ځلوېښتو سپرو سره واستاوه او له اخوند صاحب څخه ئې وغوښتل چي امیر ته پر انګریزي قواوو باندي د بري له پاره دعا وکړي؛ او په ضمن کي ئې د برتانیې سره د خپلي پخوانۍ دوستۍ له امله پښېماني هم څرګنده کړې وه. اخوند صاحب دغه هیئت ته په جواب کي وویل چي اخوند یوازي د دعا سړی نه بلکي د عمل سړی دئ. که امیر په خپل قول کي صادق وي نو د خیبر له لاري دي پر پېښور باندي حمله وکړي او دی به د مله کنډ له لوري پر انګریزانو باندي یرغل وکړي.
Ibid p ۵۷

د دې خبري احتمال ډېر لیري ښکاري چي د امیر شیرعلي خان او برتانیې د اختلافاتو په وخت کي دي د جلال اباد والي له ځلوېښتو سپرو سره د سوات سیمي ته، چي شاوخوا ټوله د برتانیې د قواوو تر نظارت او کنټرول لاندي وه، ورسېږي او اخوند ته دي د انګرېزانو پر خلاف د جنګېدلو په باب پیغام ورسوي. له بلي خوا، اخوند په دغه وخت کي ډېر سپین ږیری او کمزوری وو او ایله یو کال نور ئې ژوند وکړ او د ځلوراتیا کالو په عمر وفات سو. د هغه له پاره به دا چنداني ممکنه نه وه چي د عمر په دغه وخت او ناروغي کي ئې له سره جهاد ته ملا تړلې وای. بلکي اخوند د عمر تر پایه پوري د هغوی دوست پاته سوی دئ او هیڅ وخت ئې د هغوی پر ضد په تبلیغ او عمل لاس نه دئ پوري کړی.

د سوات اخوند صاحب په ۱۸۷۷ کي وفات سو او د عمر په پای کي ئې د هند د آثار

پردیش د ایالت څخه نیولې، تر پنجاب، پېښور او افغانستان پوري په هره سیمه او علاقه کي مریدان او روحاني نفوذ درلود. هغه په اتارپردېش، پنجاب، پېښور، کوهستان، وزیریستان، دیر، افغانستان او تیراه کي دیارلس خلیفه ګان وټاکل او د خپلي طریقې د تبلیغولو وظیفې ئې ور وسپارلې.

Ibid p ۵۹

د انګرېزي څېړونکو، فوکلوري سندرو او مسلمانو لیکوالانو او څېړونکو له لیکنو څخه سړی په جرأت سره ویلای سي چي د پښتونخوا په علاقه کي ښایي له اخوند صاحب څخه مخکي او تر هغه وروسته د هغه په څېر محبوب مذهبي مشر نه وي پیدا سوی او نه ئې ښایي پر عادي خلکو او قومي مشرانو باندي د هغه په څېر نفوذ درلودلی وي. د هغه دغه نفوذ د هندوستاني مجاهدینو په ځپلو، په پښتني قبایلو کي په تجریدولو او له پښتني سیمو څخه په شړلو، د وهابي او حتی کافر په نوم بدنامولو کي ډېر زیات اثر درلود. هندوستاني مجاهدین د اخوند صاحب تر وفات وروسته، په بېلو بېلو پښتني او غیر پښتني سیمو کي، د هغه د خلیفه ګانو له مخالفت سره مخامخ ول او مځکه ئې ورته سره تبۍ کړې وه. پر بېسوادو او بېخبره پښتنو باندي، چي اخوند صاحب ته ئې د غوث صمداني په نوم عقیده درلوده، د هغه د خلیفه ګانو اثر پروت وو. د هغوی له پاره تش د وهابي نوم، چي تر اوسه پوري ئې لا سم په مفهوم نه پوهېږي، د مجاهدینو څخه د نفرت کولو له پاره کافي وو، او د هغوی له پاره ئې د هر ډول مذهبي اصلاحاتو او د انګریزي استعمار پر ضد، د سیداحمد بریلوي او د هغه د ملګرو د ارمان د پوره کولو له پاره، د فعالیت ساحه تنګوله.

**خانان او سرداران:**

څرنګه چي د هند ښارونه او خاوره د فرنګیانو تر مسقیم او غیرمستقیم تسلط لاندي وه او سیداحمد بریلوي هغوی ته د دین او وطن د دښمنانو په سترګه کتل نو ئې د هند خاوره، د خپل مرشد شاه عبدالعزیز په څېر، دارالحرب وبلله او د هغوی په مقابل کي ئې جهاد یوه دیني فریضه اعلان کړه. هغه خپلو پیروانو او مسلمانانو ته ویل چي یا باید د غیر مسلمانو واکدارانو سره جهاد وکړي او که جهاد کول ورته ممکن نه وي نو باید چي یوه بل اسلامي هیواد ته مهاجرت وکړي او که مهاجرت نه سي کولای نو په خپلو سیمو کي د غیر مسلمانو واکدارانو د پرزولو له پاره له ټولو وسایلو څخه استفاده وکړي. داسي ښکاري چي سیداحمد بریلوي په دې ښه پوهېدی چي انګرېزي تاجران د هند د خپلواکۍ له پاره تر ټولو لوی خطر دئ او د هغوی د ایستلو له پاره باید ټول وس په کار واچول سي. هغه د مریټیانو یوه مشر راجا هندو راو ته په یوه لیک کي د خپلو هلو ځلو سره د ټولو هندي ایالتونو د همکارۍ غوښتنه کړې وه. هغه د هند د ایالتونو هندو او مسلمانو مشرانو ته په خپلو لیکونو کي ویلي وه چي له ده سره د هغو دښمنو خارجیانو په ایستلو کي مرسته وکړي چي له لیري ځایونو څخه، د کاروبار او پانګي اچوني له پاره، هند ته راغلي دي. The History and Culture p ۸۸۷

د هغه له پاره د هند په ښارونو او د انګريزانو تر تسلط لاندي سيمو کي جهاد ممکن نه وو؛ ځکه ئې نو بايد د هغوی پر ضد د تبليغ او جهاد داسي يوه سيمه انتخاب کړې وای چي لږترلږه د لنډي مودې له پاره، د هغوی له حملو څخه ساتلې وي. سيد دا کار د مسلمانو اميرانو، سردارانو، قومي مشرانو او خانانو له مرستي پرته نه سوای کولای. خو له هغه سره د سند اميرانو، د هيڅ ډول مرستي ژمنه و نه کړه. د کندهار سردارانو، چي هم په خپلو کي د قدرت او شته منيو د ډېرولو له پاره په ښکاره او پټو دسيسو لګياوه، هم ئې د کابل د امير دوست محمد خان په مقابل کي دسيسې کولې او هم ئې د انګرېزي استعمار سره مقابله غير ممکنه ګڼله. له سيد سره د هيڅ ډول ملاتړ وعده و نه کړه. امير دوست محمد خان د نورو سردارانو په څېر د مرستي ژمنه ورسره و نه کړه او سيد احمد بريلوي د خپلو ورسره ملګرو او مجاهدينو سره د سوات او بونير غرنيو سيمو ته مخه کړه.

سيد احمد بريلوي د پښتنو له غرنيو سيمو څخه، سيمي ته نيژدې، پاچاهانو او سردارانو ته د انګرېزي استعمار سره د مبارزې له پاره ليکونه واستول خو د هيڅ يوه څخه ئې نه د مرستي ژمنه تر لاسه کړه او نه چا عملاً مرسته ورسره وکړه. هغه د بخارا امير ته په يوه ليک کي، په څرګنده توګه، د هند پر خاوره باندي د نصارا حاکميت ته اشاره کړې ده او له هغه څخه ئې د هغوی د شړلو له پاره د مرستي غوښتنه کړې ده. سيداحمد بريلوي د بخارا امير ته وليکل چي فرنګي کافران، چي د هند پر خاوره باندي مسلط سوي دي، ډېر هوښيار او چالاک دي او که د خراسان سيمي ته ورسېږي نو ډېر ژر به هغه ښارونه هم لاندي کړي؛ او په دې توګه به د دارالحرب پولي دارالاسلام ته ورسېږي.

History of the Punjab p۷۱

سيد احمد بريلوي دغه راز سدوزي شاه محمود ته، چي په هغه وخت کي د هرات حکمران وو، وليکل چي د فساد له منځه وړل او له هغه سره جهاد کول پر هر مسلمان باندي فرض دي. څرنګه چي اوس د هند پر ټولو ښارونو باندي کفار حاکم دي او دې فتنې د هند او خراسان ټول ښارونه نيولي دي نو پر ما باندي فرض وه چي په هند کي د خپل اصلي ټاټوبي څخه وخوځېږم، د هند، سند او خراسان په ښارونو کي وګرځم او د دغو سيمو مسلمانان جهاد او مبارزې ته تشويق کړم. Ibid p ۷۱

سيد احمد بريلوي د هرات شهزاده کامران ته وليکل چي هر کله ئې دغه سيمي د کفارو او منافقينو څخه پاکي کړې نو بيرته به له خپلو ورسره مجاهدينو سره د هند خاوري ته ځي او هلته به د کفر او طغيان له منځه وړلو له پاره جنګېږي ځکه چي د ده اصلي مقصد په هند کي جهاد دی، نه په خراسان کي اوسيدل. Ibid p ۷۲.

لکه څرنګه چي د سيد سره د سند، کندهار، کابل، هرات او بخارا اميرانو او سردارانو مرسته و نه کړه دغه راز ئې د پښتنو د غرنيو سيمو خانان او قومي مشران، لکه څرنګه چي ده به ئې انتظار درلود، هم چنداني په درد و نه خوړل بلکي زياتره وختونه د ده د

تحریک په مقابل کي خنډ سول او حتی د ناکامۍ علت ئې وګرځېدل. مخکي مو ولیدل چي د هند ښادي خان په لومړي سر کي د سید احمد بریلوي سره د هر راز مرستو ژمنه وکړه، خو وروسته د سیکهانو ملګری سو او د خپل خیانت سزا ئې ولیده. د پېښور حکمران سردار یارمحمد خان خو د سید احمد سره د جنګ میدان ته حاضر سو او په جنګ کي ووژل سو. سردار سلطان محمد خان طلایی، چي تر مرګه سیکهانو ته وفادار پاته سو، د سید سره پر خپلو ټولو وعدو پښېمانه سو او د ورسره خانانو او ملکانو سره یو ځای ئې په یوه شپه په پېښور کي د سید احمد بریلوي ټول ملګري قتل عام کړل. که له سید سره د پښتنو خانانو د زړه له کومي ملاتړ ملګری وای نو ښایي د سیکهانو پوځي قدرت هغه په دومره اسانۍ او دومره ژر له منځه وړی هم نه وای. خانان، قومي مشران او سرداران له لویه سر د یوه لوی ارمان او یوه پراخ قومي او ملي تحریک له پاره ښه وسایل نه دي. هغوی معمولاً په خپلو قبیلو کي دننه او د خپلو قبیلو څخه دباندي د لیري او نیژدې قبایلو سره د شته منیو او قدرت د تر لاسه کولو او وینو تویېدلو د بدل اخیستلو له پاره په جګړو لګیا وي. تربور او تربور ګلوي زیاتره د دښمن او دښمنۍ په معني پکښي اخیستل کېږي (تر بور که ښه وي د تره زوی دئ که بد وي د خره زوی دئ) خانان او قومي مشران د خپل تربور د له منځه وړلو او کمزوري کولو له پاره، زیاتره وختونه، د هر قدرت سره ملګري کېدلو ته حاضر وي؛ ځکه نو د هغوی پر وفاداري باندي چنداني حساب

نه سي کېدلای. ایچ پی لمسډن H.P. Lumsden په ۱۸۴۷ کي، چي د هندوستاني مجاهدینو تحریک لا ښه په زور کي وو، د عجب خان د خدمتونو یادونه کوي چي څرنګه ئې د ده قواوو ته په غرنیو لارو کي لارښودنه وکړه او دوی وکړای سوای چي د هغه په مرسته د بابوزي قبیلې مقاومت شنډ او د هغوی کلي تباه کړي. دی وایي چي که د عجب خان مرسته نه وای ښایي د بونیر جنګیالیو دی او د ده قواوي تباه کړي وای خو عجب خان ده ته د بونیروالو د کمین او ناڅاپي حملې څخه مخکي له مخکي خبر ورکړ او دوی ئې له فاجعې څخه وژغورل. Settling the Frontier p ۱۵۲

په ۱۸۵۷ او ۱۸۵۸ کلونو کي، چي انګریزان د هند د مسلمانانو د ښورښ او د ډهلي د محاصرې په وخت کي له سختو ستونزو سره مخامخ ول، نو بیا هم عجب خان او د یوسفزیو ځینو نورو خانانو د هغوی له پاره ملیشه قواوي برابري کړې او پر هندوستاني مجاهدینو او ښورښیانو باندي ئې په حملو کي د انګریزانو مرسته وکړه، په داسي حال کي چي د پښتنو ډېر خانان او قومي مشران د هندوستان د ښورښي قواوو په ملاتړ درېدلي ول. انګرېزانو همدغه ملیشه قوتونه، د پنجاب له قواوو سره یو ځای، د ډهلي د محاصرې د ماتولو او ژغورلو لپاره ولېږل. Ibid

د غه راز د ۱۸۳۸ څخه تر ۱۸۴۲ پوري، د انګرېزانو او افغانانو د لومړي جنګ په کلونو کي، د لال پوري د مهمندو یو مشر سعادت خان د انګرېزانو په مقابل کي په جنګ او

مقاومت لاس پوري کړ. د هغه تربور توره باز خان سمدستي د انګرېزانو ملاتړ پيل کړ او په اباسين او جهلم کي د انګرېزانو خدمت ته حاضر سو. انګريزانو هم هغه ته د لال پورې خاني ورکړه. کله چي انګرېزانو په افغانستان کي ماته وخوړه نو توره باز خان انګرېزانو ته وتښتېدی او سعادت خان بيرته د لال پورې خاني ترلاسه کړه. The Borderland p ۲۲۷

مور مخکي وليدل چي د امبيلې په جنګ کي پښتنو دومره قرباني ورکړې او دومره زور ئې وښود چي د انګرېزانو د قواوو قوماندان چمبرلين مرکزي حکومت ته د عقب نشينۍ کولو پېشنهاد وکړ او په جنګ کي ډېر سخت ټپي سو، مګر د پښتنو ډېرو سترو خانانو او قومي مشرانو د جنګ په ګرماګرم کي د پېښور له انګرېز کميشنر څخه ټنګې واخيستلې او مقاومت ئې کمزوری او مات کړ. د مجاهدينو د مقاومت او هستوګني مرکزونه ئې وسوځول او د مجاهدينو يوه ډله ئې د قتل عام خولې ته ورکړه. دغه راز اقداماتو او د خانانو څرګندو خيانتونو او نامرديو د مجاهدينو د تحريک د وسله وال مقاومت تر پايه پوري دوام درلود او هغوی ئې له مرګانيو ستونزو سره مخامخ کړي ول. که څه هم چي د انګريزانو د منظمو پوځونو، عصري وسلو او پيسو سره، چي د پښتني سيمو د لاندي کولو فيصله ئې کړې وه، مقاومت د غير ممکن تر سره پوري ګران کار وو؛ خو که د لويو خانانو او سردارانو همکاري او ملاتړ ورسره وای نو انګرېزانو به دا سيمي په دونه اساني لاندي کړي نه وای او تر ابده به له ستونزو سره مخامخ وای.

سراولف کيرو Sir Olaf Caroe د سيد احمد بريلوي او په عمومي صورت د پښتنو د تحريکونو او قدرتونو په باب ليکي چي د پښتنو په ټولنه کي يو مشر را پيدا سي او ټول قبايل سر يو موټی کړي او چي څه خنډونه ئې په مخکي وي هغه له منځه يو سي او پر ټولو رقيبانو غالب سي. تر يو وخته پوري د پښتنو قبايلو او مشرانو تر منځ داخلي دښمنۍ او رقابتونه هېر سي، او ټول په يوه زړه او يوه خوله تر يوه متحد بيرغ او شعار لاندي راټول سي. داسي انسانان او افراد ډېر ليده کېږي چي مرګ ته مخ پر تندي ورځغلي او ځان قرباني کوي. په هر ځای کي دغه د قربانۍ احساس او جذبه چلېږي. خو په دغه ترڅ کي يو مشر د ځان په ستايلو، باټو او شخصي ګټو په لاسته راوړلو لګيا سي. په دې توګه، هغه ارمان چي د يو موټي کېدلو او قربانيو سبب سوی وو له ناکامۍ سره مخامخ سي، کينې او بد نيتي پيل سي. هغه کوښښونه او هلي ځلي چي د برياوو او لاسته راوړنو د ساتلو له پاره ضروري دي، د قبايلو تر وس ووزي او نور دوام نه سي کولای. پښتانه تر لاسه کړي مځکي او برياليتوبونه له لاسه ورکړي. د تحريک پر مشر باندي اعتماد سست سي او ټول قبايل لکه څرنګه چي ورته راغلي وه هغسي ورڅخه ولاړ سي، او مشر پر سپين ميدان پاته سي. The Pathans p ۳۰۵

البته، د کابل د دربار او سردارانو په مقابل کي خبره په دغه ډول نه وه. د سرحد پښتنو په عمومي صورت، د کابل پر حکومت باندي حساب کاوه او هغه ته ئې د انګريزانو، سيکهانو او بل هر خارجي دښمن په مقابل کي د

يوه قوي ملاتړ په سترګه کتل. ښايي علت به ئې دا وو چې دوی د کابل حکومت د پښتنو يو قانوني قدرت باله او د خانانو او قومي مشرانو پر زور او بازو باندې ئې، چې نن به سره يو ځای او سبا به سره دښمنان ول، ډېر حساب نه سوای کولای. خو د کابل دربار د خيبر څخه کښتې خوا پښتنو له تحريکونو او شورښونو سره ډېره لږ علاقه ښودله، او يوازې به ئې د خپل ضرورت په وخت کې د هغوی ملاتړ کاوه او يا به ئې مرستي ورڅخه غوښتلې. د سيد احمد بريلوي او په عمومي صورت د خيبر څخه د کښتې پښتونخوا د تحريکونو د ناکامېدلو يو عمده علت له هغوی سره د کابل د دربار او سردارانو بې علاقه ګي وه.

امير دوست محمد خان په ۱۸۳۴ کال کې د سيکهانو سره د جنګ په وخت کې د سوات له اخوند صاحب څخه مرسته وغوښتله. اخوند صاحب له خپلو قومي لښکرو سره، چې زياتره په تورو او خنجرونو او يو لږ شمېر ئې په توپکو سمبال ول، د پوځي روزني خبره خو بيخي په منځ کې نه وه، د امير مرستي ته تر پېښوره پوري ورغی. البته امير بېله جنګه ماته وکړه او اخوند هم له خپلو قومي لښکرو سره بېرته سوات ته وخوځېدی. دغه راز په ۱۸۳۹ کې د افغان او انګليس د لومړي جنګ په وخت کې، چې انګرېزي پوځيانو او شاه شجاع د غزني ښار محاصره کړی وو، د هندوستاني مجاهدينو مشر مولوی نصيرالدين له زرو تنو مجاهدينو سره د افغانانو مرستي ته ورغی. په هغه جنګ کې ئې درې سوه مجاهدين تلف سول. کله چې امير دوست محمد خان قدرت ته ورسېدی نه امير او نه د هغه زوی امير شېرعلي خان د مجاهدينو يا نورو هغو پښتنو سره چې د انګرېزي استعمار په مقابل کې ئې مقاومتونه کول خواخوږي قدر ښکاره کړه.

په ۱۸۵۷ کال کې چې په هند کې د انګرېزي استعمار په مقابل کې مسلمان عسکر ياغي سول او د ډهلي په ښار کې دننه جنګونه پيل سول، او د هند زياتره مسلمان نشينه سيمي شورښونو ته تياري وې، امير دوست محمد خان د هر ډول اقدام کولو څخه ځان وژغوره. انګرېزي مؤرخين ليکي چې که څه هم چې د امير خپلو سردارانو او د کورنۍ غړو پر هغه باندې له هري خوا زور واچاوه چې د هند مسلمانانو تر څنګ ودرېږي او د دغه خدای ورکړي فرصت څخه ګټه واخلي او د پېښور ښار بېرته تر لاسه کړي مګر امير له انګرېزانو سره پر خپله دوستي کلک ودرېدی. که امير په دغه وخت کې پر پېښور باندي حمله کړې وای، که ئې نور هيڅ نه وای کړي نو لږترلږه موږ به د پنجاب څخه د ډهلي د محاصرې د ماتولو له پاره قوه نه وای لېږلې. دې کار به د ډهلي محاصره اوږده کړې وای او ښايي جنګ د انګرېزانو په تاوان تمام سوی وای. د پنجاب اعلی کميشنر Sir John Lawrence سر جان لارنس پېشنهاد وکړ چې د اباسين ټولي لوېديځي سيمي خوشي کړي. که څه هم چې سړی دا نه سي ويلای چې که امير دوست محمد خان پر پېښور باندي حمله کړې وای نو څه به پېښنه سوې وای مګر دونه ويلای سي چې امير په هغه بحران کې د انګرېزانو سره پر خپلي دوستۍ ټينګ ودرېدی او په هغه وخت کې د ده بېطرفي د ستاينې وړ ده.

History and Culture p ٦٧٧

په زړه پوري خبره خو لا دا ده چې امير شېرعلي خان هغو پښتنو خانانو ته چې د انګرېزي استعمار په مقابل کې ئې د ده په ګټه، مقاومتونه کول د بند سزا ورکړه او د هغوی

مخالف قومي مشران او خانان ئې قدرت ته ورسول. سعادت خان او د هغه زوی نوروز خان ئې بندیان کړل او د هغوی د زاړه رقیب طره باز خان زوی ته ئې د مهمندو خاني وسپارله. خو نوروز خان ځان بیرته خپل قام ته ورساوه او قومي مشرتوب ئې لکه څرنګه چې د ملي او قومي مشرانو حق دئ تر لاسه کړ. د سعادت خان لمسي په ۱۸۷۸ کال کې، پر افغانستان باندي د انګریزانو د یرغل په وخت کې، پر انګریزي لښکرو باندي ډېري سختي حملې وکړې او د پښتنو او افغانستان له خاوري سره ئې خپله مینه ثابته کړه. یو ځل خو د مهمندو او باجوړیو د لښکرو شمېر، چې د انګریزانو پر قواوو او د هغوی پر طرفدارو خانانو ئې حملې کولې، دوولسو زرو تنو ته ورسېدی؛ خو څرنګه چې نه د کابل او نه د بل کوم لوري مرسته ورسره وسوه نو د پښتنو دغو لښکرو هم د انګریزانو د منظمو پوځونو او عصري وسلو په مقابل کې تاب را نه ووړ او مقاومتونه مات سول.

The Borderland pp ۲۳۶-۲۳۷

د کابل دربار او نورو سردارانو، له امیر دوست محمد خان څخه نیولې تر امیر عبدالرحمن خان او امیر حبیب الله خان پوري، نه یوازي د هندوستاني مجاهدینو او د برتانوي استعمار پر ضد تحریکونو سره مرستې و نه کړې بلکي د هغوی په ځپلو کې ئې برخه اخیستله. امیر عبدالرحمن خان په لومړي سر کې د هډې ملا (ملا نجم الدین)، ملا پوونده (ملا محی الدین)، کربوغه ملا او نورو کسانو سره ډېر ښه اړیکي درلودل او په وروسته کې ئې د کابل له لوري د هر ډول مرستو څخه مأیوس کړل. ملا پوونده د ۱۸۹۶ کال په اوړي کې له څلور زره وزیرو سره، چې ډېری ښځې او ماشومان هم ورسره ول کابل ته ولاړ او د امیر څخه ئې د انګریزانو په مقابل کې د مرستې غوښتنه وکړه. ملا پوونده ویل چې دوی غواړي وزیریستان د افغانستان خاوره وګڼله سي او برتانویان ورڅخه ووزي. که چیري امیر مرسته ورسره و نه کړي نو دوی مجبور دي چې په خپلو وسایلو به دا جنګ پر مخ بیایی.

Kandahar Newsletters vol ۷ p ۱۷۷

امیر په لومړي سر کې نه غوښتل چې له ملا پوونده سره وګوري او د هغه سره ملګرو وزیرو ته ئې په چمن حضوري کې په خیمو کې ځای ورکړ؛ او کله چې ئې له ملا او د هغه سره له ملګرو ملکانو سره وکتل نو ورته وې ویل چې تاسي اوس د فرنګي پر ضد جهاد کوی او سبا چې هغه ولاړ سي بیا به زما پر ضد جنګېږی او ما به د فرنګي ملګری بولی. په دې برخه کې د ملا پوونده دلایلو او اطمینان هیڅ ډول اغیزه و نه کړه او بالاخره امیر، څو ورځي وروسته، د کابل د کوتوال په خوله ملا پوونده ته وویل چې امیر د برتانیې له حکومت سره دوستانه اړیکي لري او هغه د ملا پوونده په وجه نه سي خرابولای. ibid pp ۱۸۹-۱۹۰

ملا پوونده بالاخره له کابل څخه ولاړ او د تګ په وخت کی ئې له امیر څخه د خپلو شپاړسو ورکو سویو ملګرو په باره کې د معلوماتو غوښتنه وکړه، خو امیر ورته وویل چې هغوی ښایي خپلو وطنونو ته تللي وي او دوی به وروسته تحقیقات وکړي. ibid p ۱۹۵

په زړه پوري خبره دا ده چې امیر عبدالرحمن خان هغو کسانو ته چې انګریزانو ته ئې تکلیف ورکړی او یا یې وژلي ول، سزاوي ورکولې. امیر ته د افغان او انګلیس له دوهم جنګ څخه شپاړس کاله وروسته رپوټ ورسېدی چې د لوګر اوسېدونکي میر امام د

جنګ په وخت کې هم انګرېزان وژلي او هم ئې هغو کسانو ته ستونزې پېښې کړې وې چې د انګرېزانو د پوځ له پاره د غلې دانې د اخیستلو له پاره به کلیو ته تلل. امیر هغه سړی او د هغه درې زامن بندیان کړل او د هغوی شتمني ئې ضبط کړه. ibid p ۱۱۳

امیرعبدالرحمن خان د انګرېزانو او قبایلو په برخه کې یو ډول متضاد او په لږ وخت کې بدلېدونکي دریځونه درلودل. د ۱۸۹۷ د اکتوبر په میاشت کې ئې د ادم خېلو اپرېدیو جرګه کابل ته راوبلله او له هغوی څخه ئې د انګرېزانو په مقابل کې د پاڅون او پر هغوی باندې د حملو دلایل وغوښتل. هغوی خپل دلایل ورته وویل. امیر په لږ وخت کې د تقویم الدین په نوم رسالې، په افغانستان کې دننه او په قبایلي سیمو کې، خپرې کړې. له ټولو مسلمانانو څخه ئې وغوښتل چې د کافرانو سره جهاد وکړي او په جنګ کې پر شا رانه سي. څوک چې په جنګ کې پر شا راسي په آخرت کې به ئې ځای دوږخ وي. دې رسالو ډېره چټکه اغېزه وښندله او په لږ وخت کې په قبایلو کې، له انګرېزي قواوو سره، د وړو او لویو جنګونو اورونه بل سول. د برتانوي هند حکومت د امیر د دې عمل په مقابل کې ډېره سخته خواشیني وښودله او امیر ئې وهڅاوه چې د قبایلو سره له خواخوږۍ څخه لاس واخلي. د حکومت دې عمل خپله نتیجه ورکړه او د خمند حکومت ته ئې اطمینان ورکړ چې نه به خپلو رعیتو ته د قبایلو په جنګونو کې د برخې اخیستلو اجازه ورکوي او نه به د انګرېز حکومت دښمنانو او نه به وسله والو کسانو ته په خپله خاوره کې پناه ورکوي. کپټن ایچ ایل نیویلCaptain H.L Nevill لیکي: "دا په انصاف سره ویلای سو چې د ۱۸۹۷ د عملیاتو په جریان کې عبدالرحمن خپله ټینګه بې طرفي وساتله. هغه زموږ په مقابل کې د پاڅون مذهبي دلایل و نه منل او قبایلو ته ئې د هغوی د بېځایه او غلطو اعمالو له امله خبرداری ورکړ او ورته وې ویل: زه باید په لنډو عباراتو درته ووایم چې زه ستاسي له مسایلو سره هیڅ اړه نه لرم، ستاسي له چارو سره هیڅ غرض نه لرم، ځکه چې زه په تاسي باور او اعتماد نه لرم. تاسي داسي فکر مه کوئ چې زه د شېرعلي په څېر احمق یم، چې ستاسي په خاطر پر نورو تعرض وکړم او آزار ورکړم. ستاسي اصلي هدف دا دئ چې ما د انګرېزانو له حکومت سره جنګ کولو ته مجبور کړی او که زه دغه احمقانه عمل ته لاس واچوم نو یقین لرم چې تاسي به د جنګ په وخت کې خپلې تماشې کوی".

مګر ملایانو او د سرحد قبایلو د ۱۸۹۷ کال د جولای تر پایه پورې خپل کار کړی وو او ټول سرحد پر ښور راغلی وو. قبایلو پر مله کنډ باندې حملې وکړې او چکدره ئې محاصره کړه. مومندو پر شنکر ګړ باندې حملې وکړې. اپرېدیو او اورکزیو د سامانه قلاوې محاصره کړې او حکومتي قواوو د خیبر د درې کنټرول په بشپړه توګه له لاسه ورکړ... Campaigns on the Northwest pp ۲۱۲-۲۱۳

د هندوستاني مجاهدینو، چې تحریک ئې د شلمې پېړۍ تر دریمې لسیزې پورې دوام درلود، او په پښتونخوا کې د انګرېزانو په مقابل کې د نورو مذهبي او سیاسي تحریکونو په مقابل کې د امیر حبیب الله خان پالیسي هم د خپل پلار په څېر وه. په داسي حالاتو کې به د پښتونخوا د سیمې مذهبي او ملي تحریکونو د کابل له دربار څخه د کومې مرستې انتظار درلودلی وای. طبیعي خبره ده چې غیرمنظمو قبایلي تحریکونو یو په بل پسې د انګرېزانو د

زور، منظمو او روزل سويو عسکرو، عصري وسلو او زرو په مقابل کې ډېر دوام نه سو کولای او يو په بل پسې مات سول.

په پښتني سيمو کې د ټولنيزو او مذهبي اصلاحاتو تحريک، لکه څرنگه چې د سيداحمد بريلوي او هندوستاني مجاهدينو څخه ډېر مخکې پيل سوی وو، د هغوی د تحريک د کرارېدلو سره خاموش نه سو. د هډې ملا او د ترنگزو صاحب، د هغه ملگري د الينگار فقير او د حاجي صاحب زامنو هم د اصلاحاتو تحريک ته دوام ورکړ او هم ئې د انگريزانو پر قواوو او د هغوی پر طرفدارو خانانو او مشرانو باندي حملې کولې. حاجي صاحب او د هغه زامنو په ۱۹۳۵ کال کې د خپلو حملو لمن تر پېښور او نوښار پوري، چې د انگريزانو منظمي قواوي پکښي پرتې وې، پراخه کړه.

The Frontier ۱۸۳۹-۱۹۴۷ P ۱۷۹

انگريزي قواوو ډېر ژر د هغوی خوا ته توجه واړوله او حاجي صاحب مجبور سو چې د مهمندو علاقو ته پر شا سي. په هغو سيمو کې ئې د انگرېزي قواوو او برتانوي هند له حکومت سره خپل سخت مخالفت او تبليغاتو ته دوام ورکړ. د برتانيې حکومت پر هغه باندي څو خله ډېري سختي حملې وکړې خو تر پايه پوري د حاجي صاحب په نيولو، وژلو او ماتولو بريالی نه سو.

Lords of the Khyber P ۱۹۵

د کابل حکومت د ترنگزيو له حاجي صاحب او د سرحدي قبايلو له پښتنو سره د انگريزانو په مقابل کې هيڅ مرسته و نه کړه. په ۱۹۱۹ کال کې، د افغان او انگليس د دريمي جگړې تر پيل کيدلو مخکي، اعليحضرت امان الله خان د ترنگزيو حاجي صاحب ته وليکل چې که مرميو ته اړتيا لري نو سپه سلار به ئې ورته ورسوي.India and Afghanistan p ۱۱۴

البته مرمۍ بايد د ترنگزيو حاجي صاحب ته څکه نه وي رسېدلې چې دا ليک هدف ته تر رسېدلو مخکي د برتانوي مقاماتو لاس ته ورغی. په ۱۹۳۳ کال کي چې مومندو په يوه لوی پاڅون لاس پوري کړ د کابل حکومت نه يوازي له هغوی سره مرسته و نه کړه بلکي په پټه ئې انگرېزانو ته اجازه ورکړه چې د هغوی کلي او وسله والي ډلي حتی د افغانستان په خاوره کي دننه هم بمباري کړي او له دې وروسته د کابل او انگرېزانو د حکومت تر منځ انډيوالي نوره هم ټينگه سوه. د دې کار يو علت دا وو چې نادرشاه او د هغه زوی ظاهر شاه د مومندو او نورو پښتنو له وسله والو مقاومتونو څخه په بېره کي ول او هغه ئې د خپل قدرت له پاره يو خطر باله. (د جرمني امپراطورۍ افغاني جگړه: ۱۰۴) د برتانوي هند څخه د انگرېزانو د وتلو او د هند او پاکستان د وېشل کېدلو څخه وروسته د پښتونخوا په قبايلي سيمو کي وسله وال مقاومتونه کرار سول او يوازي فقير ايپي د انگرېزانو پر ضد د جهاد د تبليغ پر ځای د پنجاب د حکومت پر ضد جگړې ته دوام ورکړ او د وزيرستان په غرونو کي ئې د يوه ملي مشر په حيث د پښتونستان، يا د پښتنو له پاره د يوه مستقل دولت د جوړولو، چيغه پورته کړه.

Political Leadership p ٦٢

هند او افغانستان د پښتونستان د داعيې او جوړېدلو ملاتړ وکړ. دا ملاتړ يوازي د تبليغاتو او پروپاگندې په ساحه کي وو او پخپله له ايپي فقير سره، چې تر ۱۹٦۰ کل پوري ژوندی وو، او تر مرگه له خپلي غوښتني څخه تېر نه سو، چا عملي مرسته و نه کړه.

نور بيا ...

# هنر او ادب

**چلوونکی: پردېس کندهاری**

شهید پتیال

## غزل

مور له موج سره اشنا یو تر توپانه به ورځو
دلمرونو قاصدان یو تر آسمانه به ورځو

له مستۍ سره بدمست یو له ډُرو مو پروا نسته
په تناکو پښو زاهده تر مغانه به ورځو

منصوري قهر مو ویښ دئ دار مو نه سي ګرځولای
د خپل سر په نذرانه کي تر جانانه به ورځو
له محرابه بغاوت دئ له توبو توبه ګاري ده
د ګناوو پر لار باندي تر ایمانه به ورځو
څه که سر بایلو آسمانه څو ورځو چي هر څه کېږي
د رندانو په خلاصون کي تر زندانه به ورځو
د هوس څراغ به ساتو په سپېڅلو رونو تېلو
د مست خیال پر وزرونو تر سبحانه به ورځو

زړه به سپین کړو د مخونو په څېر ښکلی او روښانه
بیا د نُور په ملګرتیا تر لامکانه به ورځو

په تصویر کي د پتیال د انکارونو نښاني دي
خو د یار او د نګار تر هر فرمانه به ورځو

استاد جهاني

## غزل

خدایه د زمان بادونه زمور د وطن ښکلي وړي
هره ورځ له کلیو له ښارونو نازولي وړي

څه به کړو ملګرو د حالاتو سترګي سرې وینم
یار چي مي پخپله د اغیار توري پوښلي وړي
څوک به د کیږدۍ د ماښامونو لمبې بلي کړي
زما چي د نکریزو جنازې له ښار او کلي وړي
زه به مي د پېغلو لونګین په وینو سور وینم
شیخ دي مرغلري له تسپو سره پېیلي وړي
ما چي د زاهد کیسه کول تاسي به نه منل
ګورئ تر خلوته چي خمونه غلي غلي وړي
دلته خُم د وینو هلته جام د کوثرونو دئ
برخي ازلي دي له آسمانه ئې راغلي وړي
نور د نیمي لاري د یارانو کیسې مه پوښته
وینم بتخانو ته پر تندي سجدې منلي وړي
ګوری چي د وینو د بدل تمه ترې و نه کړئ
یار مو د قاتل په لار کي شمعي لګولي وړي

زه دي جهاني د نصیب ستوری مرور وینم
ستوري د سهار څخه امام سترګي ګنډلي وړي

۲۰۱۴ ویرجینیا دېسامبر دوولسمه

عبدالنافع ثنا

### د یو ځوانیمرګ دوست په یاد

عکس د ښکلا، د آئينې له لاسه ولوېدی
جام وو د خندا، د فرښتې له لاسه ولوېدی

پېښه د تقدير پاڼو کې لويه حادثه سوله
وګوره! قلم د زمانې له لاسه ولوېدی
يو ناڅاپه والوتلې توري د تورتم سېلۍ
نور د ډېرو سترګو، د ډېوې له لاسه ولوېدی
خوب د تغافل، د وصل منځ کې غلبه وکړه
زړه د يو عاشق، د معشوقې له لاسه ولوېدی

نيت د ساقي تنګ سو چې نوبت د ثنا ورسېد
بحر د مستۍ، د پيمانې له لاسه ولوېدی

محمدعمر ساغر

## غزل

سولمه سترې ستا له غمه مي ګيله کوله
اوښکي مي راغلې په ښو کې تماشه کوله

زه ملامت يم د دنيا په رواج نه وم خبر
ما لېوني به تل د زړه خبر په خوله کوله
ما ويل ته به هم زما په شان يې درد به لرې
کنې ملګرې په پردېس مي مينه څه کوله
ما برقراره تسلسل د محبت ساتلی
هم مي جامونه څنبل هم به مي سجده کوله
لاره مي مه څاره ورې لېونی سوی يم اوس
نن مي پوښتنه په کوڅه کي د خپل وره کوله
خپلي ځوانۍ ته دي ارمانه مخ تورن کړم څکه
ما په پردۍ مخکه د ګلو کرونده کوله

ساغر ګرم نه وو غربت غم د ملګری درد وو
چاره ئې نه وه خامخا به ئې نشه کوله

سپوږمۍ مخلص

## غزل

تـا بـه څنګـه هېرومـه تـور زندانـه
خـاطرې در څـه لرمـه تـور زندانـه
تـا د ژوندا و تـا د وخت پـه خـوږو پـوه کـړم
هـر د ېـوال دي مچومـه تـور زندانـه
پـه کمـه ګنـاه راغلـم ستـا سـرو تـه؟
ځـان پـه لمـر تکورومـه تـور زندانـه
د ځـوانۍ خـوږې شـېبې دي زمـا اخيستي
دا بـه زه جبرانومـه تـور زندانـه
ستا پـه غېږ کـې هـم ملګرې هـم ياران دي
پـه دعـا کـې يادومـه تـور زندانـه
تـاج محـل تـه چـې د مينـې ورستنه سـم
سـتا بـه يـاد تـازه کومـه تـور زندانـه
هر کلـي تـه بـه دا سـتوري تـول ولاړ وي
چـې آزاد قـدم وهمـه تـور زندانـه
دا لاسـونه د سـپوږمۍ کمـزوري نـه دي
پنجـرې دي ماتومـه تـور زندانـه

عبدالمالک عمران

## غزل

اوس هغه خبري ښې ځني راباسي
خوله خوږ ده چي خوږې ځني راباسي
د سندرو شاپېرۍ دئ لاس راکړی
د سندرو اشيانې ځني راباسي
په روی مل وهلي سترګي مه راباسه
د ښار خلک دي فتنې ځني راباسي
په سينه کي مي خامک سولې هنداري
لمر پرې راغلی او وړانګې ځني راباسي
بيا د شپې د شپېلۍ ږغ راځي عمرانه
يو مين دئ چي نغمې ځني راباسي

پاڼه حقيقت

## غزل

چي سر مي دئ ساتلی، دا ځيګر مي دئ په مخکي
جانان راته ولاړ لکه د څپر مي دئ په مخکي

رقيبه رانژدې نه سې سينه دي درڅيرمه
تې وينې او که نه چي دا خنجر مي دئ په مخکي

هيڅ غم نه راپرېږدي راته ولاړ مي دئ په خوا کي
يو ښکلی نازنين غوندي بشر مي دئ په مخکي

رڼاوي خپروي راته زما په تور تقدير کي
نه ستوری نه سپوږمۍ ده لکه لمر مي دئ په مخکي

هر څه مي کړه قربان دا ستا په مينه کي دلبره
اوس پاته راته پاڼي دا يو سر مي دئ په مخکي

## غزل

ډېــره راتـــه ګرانـــه دا ســـتا مينـــه ســـوه
وچـــه مـــي پـــه زړه کـــي د زړه وينـــه ســـوه

مخکـــي دا کيـــسه دومـــره خـــوږه تـــه وه
تـــا چـــي راتـــه وکړلـــه رنګينـــه ســـوه

ســـتا نامـــه مـــي دومـــره زياتـــه وويـــل
ژبـــه مـــي تنهـــاکي ســـوله خوږينـــه ســـوه

راغـــی محمـــد چـــي دې دنيـــا لـــره
خلاصـــه هـــره ښـــځه لـــه ناورينـــه ســـوه

پـــاڼي چـــي لـــه تـــا سره محبـــت وکـــړ
خـــود نـــو هـــر ســـړي تـــه نازنينـــه ســـوه

موسکا اوربل

## غزل

غم مي وي پر زړه درپسي وژاړم
وژاړمه ښه درپسي وژاړم

هسي خو تا هم له ياده ويستې يم
پرې مي ږده چي زه درپسي وژاړم
ستا و تصويرونو ته فرياد کوم
کړم ورته کاته درپسي وژاړم
ستا د زلميتوب ګلاب مي بوی نه کړ
ژونده نو پر څه درپسي وژاړم

نن ښکاري اوربل راته موسکا وکړي
نن ښکاري چي زه درپسي وژاړم

مروا سپاس

## غزل

ځـار مـي کـړه ځـواني ستا تـر نامـه اشـنا
درمـي کـړه پـه مينـه کـي خپـل زړه اشـنا

مـه مـي ويـښوه زه د راز ژبـه يـم
اوښـکه يـم ويـده يـم پـر بانـه اشـنا

ټولـه شـپه مـي ستا تـصوير تـه روڼـه کـړه
ټولـه شـپه مـي وکـړه خپـل خواله اشـنا

مرګ ځوانيمرګ اوس هم پکښي چين کوي
سـر چـي خـوري نـو بـس د پښتانه اشـنا

تور بـه پـرې سپاس جوړه لېمـه کـړي خپـل
خـاوري کـه وي سـتا د قدمـه اشـنا

محبوب مشتاق

## غزل

هلته د سپوږمۍ سره ملګرې دې
څوک چې تر دې خاورو لاندې مړې دې
مه کوه بیده زړه مي راویښ نه سي
ډېره زمانه وروسته خوب وړی دې
زما نه بغیر تا کله ژوند پرې ښووی
ستا نه بغیر ما کله ژوند کړی دې
واخله زما تصویر زړه پوري ونیسه
نور د دېواله پر مخ ډېر ستړی دې
ګراني د اوبو څخه ډار مه کوه
مار نه دې د سیند د څپو پړی دې
ځان مي دې، نفس مي دې او هر څه مي
بس هغه مشتاق مي د تن غړی دې

ثرایاحمیدي افغان

## غزل

د فتنې وخت دې داسي مه راګوره
نېغ نظر کېږې داسي مه راګوره
زه بې دلیله یم مینه پر تا
ته بې دلیله پر نه څه راګوره
ستا د نظر جام ته یم ډېره تږې
که وي خواږه که وي ترخه راګوره
د غوصې زهر ماځیګر مه راوړه
په ماځیګر کي یاره ښه راګوره
د عشق یادونه د لومړۍ ورځي نه
زما په زړه کي دي پراته راګوره
ویل ئې تېز نظر دي مړ کړم په خدای
ثرایا نوره راته مړه راګوره

فدامحمد اقبال

## غزل

**کله سحر کله نهر کېږي**
**مزه د شوندو پر پرهر کېږي**
**دا لېونتوب او بې هوښي څه معنی**
**داسي په ما غریب اکثر کېږي**
**زمونږ ګودر د جنګو پارلمان**
**دلته جنګونه پر ګودر کېږي**
**ستا ئې لمونځونه زه شراب چښمه**
**نور حسابونه پر محشر کېږي**
**پښتونه غم یوازي ستا پر سر دې**
**ټوله شرونه پر خیبر کېږي**
**نامردي بیا دي شنه خالونه ایښي**
**دې ګاونډ کور کي څه خطر کېږي**
**چېرک چپلاخه پر باړو موښلي**
**د اقبال چم کي هر سحر کېږي**

عنایت الله عارف

## غزل

ته همېشه راته کوې په خوله د شر خبري
خو زه کوم تا ته په مینه د هنر خبري

ګوره جانانه لري تل داسي عادت پښتانه
وړې وړې بولي په مینه کي د سر خبري
رښتیا ملګرو تاسو هم ما غوندي یاست او که نه
که یو پر ما کوي د هر ښکلي اثر خبري
پر ښکلي مخ د یار نرۍ نرۍ خوله راولي
تاسي وروګورئ کوي ورسره لمر خبري

د عارف مخ کي ئې منګې مات کړ توبه ئې وکړه
ویل ئې نسته د ګودر او ماځیګر خبري



پوهیالی محب الله ترابي

# د جوجو محتوی

هغه ناول چې په لوستلو کې ئې تر پایه بل کار ته پرې نه ښودم، هغه ناول چې تلوسه ئې ما تر اوسه په بل ناول کې نه ده لیدلې، هغه چې کرکټر ئې د یوې بلې سیارې یا ستورې موجود یا یو افسانوي شی دئ، هغه چې د پښتني چاپېریال نادودي وار په وار ښکاره کوي او زمونږ مخې ته ئې ایږدي او نور... پوهېږی چې دا کوم ناول دئ؟ جوجو دئ جوجو!!

د ناول لیکنې له جوړښت څخه تېرېږو؛ څکه هغه توکي چې د ناول چوکاټ رغوي؛ لکه: پلاټ، کرکټر، مکالمه، منظرکشي، تلوسه، پیغام او نور ګڼ شیان په دې ناول کې ئې په خورا ښکلي ډول مراعات شوی دئ؛ خو د محتوی او موضوع له پلوه د بحث وړ دئ او باید یو څه پر وږغېږم.

هره کیسه، ناول، ډرامه او نور... تخلیقي اثار خامخا ټولنې ته یو پیغام لري او د ټولنې یو درد نه یو درد پکښې نغښتی وي؛ خو

د ناول د پېښې په اړه مې اورېدلي دي، چې په ناول کې راغلې پېښه به یا په ټولنه کې واقع شوې وي او یا به ئې د واقع کېدو امکان وي، مطلب دا چې واقعیت ته به نږدې وي؛ نو څکه ئې یو لیکوال پر ځان دا لازموي، چې یا ئې د دې ناول یا کیسې په مټ د واقع کېدو مخه ونیسي او یا ئې هم د نور تکرار مخه ډب کړي. د دې ناول له لوستلو را ته معلومه شوه. چې لیکوال ئې په ډېر مهارت یوه یوه پېښه رابرسېره کوي او د پښتني چاپېریال ناوړه دودونه په روانه ژبه وړاندي کوي.

دا چې د دې ناول اساسي موخه او غایه د پښتنو د ناوړه دودونو څخه پرده لیري کول او رسوا کول دي؛ نو د بېلګې په ډول ئې د یو څو یادونه کوم.

ستر او حیا د اسلام د سپېڅلي دین اساسي توکی دئ. ښځي باید د نامحرم کس یا د پردیو څخه په ستر او حیا کې وي، حتی چې رغ ئې پر نامحرم سړي حرام دئ؛ خو په

دې ناول کې د پښتنو همدا بد دود رسوا شوی او هغه دا چې کله هم د یو چا کور ته د خپلو تربرونو یو لس یا دوولس کلن نارینه ماشوم هم پر خپل سر ورشي نو ورته په غوسه به وي او پر زړه به ئې اور بلېږي او وایي به، چې څنګه بې له اجازې څخه زموږ کور ته راغی؛ نو لاس په بدیو او ټکولو پوري کړي؛ خو هغه کسان، چې ډولکي یا په اصطلاح وچه مېوه ئې په لاس کې وي او پېغلي ورته لوڅ سر اتڼونه کوي بې پروا دي.

• قتل قتال او بدۍ حرامي دي؛ خو موږ پښتانه به ئې پر یوه ډېره وړه مسئله باندي د پولي پټي پر سر د یو بل په وینو لاسونه سره کړي او بیا به ئې ټول عمر نوي نسل ته په میراث ورپرېږدي او بله بدبختي خو ئې بیا دا هم ده، چې خور او لور به پکښې په بدل کې ورکړي او هغه چې جزا ئې باید لیدلې وای، نه ئې ویني او جزا به ئې یو بې ګناه بنده ویني.

• مسئولیت پېژندل د دې ناول یوه بله ډېره مهمه موضوع ده. دلته ئې د شاعر او لیکوال دنده ورمعلومه کړې ده، چې واقعیتونه دي ووایي او په دې لاره کې دي د هیڅ شي پروا نه ساتي، په دې برخه کې اړینه بولم چې د ناول د متن یوه برخه ستاسي مخي ته کښېږدم:

"جو جو وویل: شاعران او لیکوال دي یاد کړل، ما هم د دوی لیکني ولوستې؛ خو زه ډاډه یم چې کوچیانو ته ئې پر پاخه سړک د روان موټر له ښیښو کتلي دي، دوی له لیري د هغي پېغلي کوچۍ تصویر اخیستی چي په اوښانو پسي روانه ده؛ خو هیڅکله ئې د هغې له وچو شونډو راوتلی سترۍ آه نه دئ اورېدلی، د هغې په چاودو پوندو کې ئې تللیو اغزیو ته پام نه دئ وراوښتی، د هغې د تندي مړو خولو ته ئې نه دي کتلي، د هغې په تنکي عمر کې ئې د سترګو شاوخوا ګونځې نه دي لیدلي.

جو جو غلی شو. تواب هماغسې خړېدلی سر روان وو.

جو جو وویل: شرط تړم که پر همدې شاعر او لیکوال یوه ورځ د کوچۍ برستن هواره کړې تر سهاره به ئې سپېږمې تینګې نیولي وي، که دې ډوډۍ ورته کېښوه، په کاسه کې به ویښتان پسي غواړي، دوی د کوچیانو د ژوند په صفت نه مړېږي؛ خو که ورته ووایې چې یوه اونۍ ژوند ورسره وکړه؛ نو د پچو د بوی و دوړو له لاسه به ئې تشناب کاغذ سپېږمو ته نیولې وي، یوه شېبه ئې د موټر له ښیښو یوه کوچۍ پېغله ولیده، سل مخه ئې په صفت ډک کړل....

مطلب دا چې یو اساسي پیغام پکښې شاعر او لیکوال ته دا دئ چې له واقعیتونو دي سترګې نه پټوي او د هوایي خبرو پرځای دي واقعیت ووایي.

د یو چا له بېوسۍ ناوړه ګټه اخیستل، ځان پر نورو پېټی کول، په بلاګانو او تورو پیشوګانو باندي د ماشومانو ویدول او ... هغه څه دي چې زموږ ټولنه ورسره لاس و ګرېوان ده؛ خو پیاوړي لیکوال نصیر احمد احمدي په خپل هنري ځواک رابرسېره کړي او د دې ناوړه دودونو څخه د خلاصون لوست راکوي.

پای



ژباړن: محمدابراهیم عطایي

# د نړۍ د بېلوبېلو ممالکو ادب

(۲۱)

## چلي

د ګابریلامیسترال اثر:

### د ژوند آواز

اې انسانه بېهوده نغمه سرایي مه کوه، ځکه همېشه د کار په آخر کي د خوښۍ او نشاط آواز ناخوانده پاتېږي.

بېهوده خپل محبوب مه مچوه، ځکه هغه مچه چي باید ستا پټ راز د محبوب د روح و نیهام ځای ته ورسوي په نیمه لار کي به له پښو پاته سوی او و محبوب ته به ئې نه ورسوي.

که غواړې چي دعا وکړې، دعا وکړه ځکه همېشه د قبول دروازه خلاصه ده، اما د هغې دعا په ویلو سره چي ستا روح آرام کړي ژبه به دي وچه سي.

د مرګ څخه هم مرسته مه غواړه چي د ژوند له درونده بار څخه به دي سپک کړي، ځکه پسله مرګه به هم ستا په روح کي دومره پوهه پاته سي چي د قبر تاریکي او د ګور د چینجو احساس وکړې.

***

(۲۲)

## برازیل

د مېرمن سیسلیامیرلس اثر:

### آرامي

اوس مي خپل سر او پښې ټکولې او ستړې يم، داسي بېهوښه پرته يم لکه په ګور کي.

پر پرده چي يو ساعت په دې بستر کي چي زما د قد په اندازه جوړ سوی استراحت وکړم، يو ګړی ارامه او د دې دېوالو په منځ کي چي د يو استراحت خانې مثال لري واوسم.

پښه دا کمال لري چي د ټولو رنګونو رنګ يې يو کړی او زما مژګان يې يو پر بل ايښي او د خاموشۍ په اوبو ئې لانده کړيدي.

پر پرده چي دا زمزمه خپل په دلپذيره آواز سره سرګرم وي.

پر پرده چي دا سحرآمېزه او لطيفه موسيقي زما د دور و دراز د خاطراتو پرې پرې کړي او آرامي راته راکړي او په آرام خوب مي بيده کړي.

(۲۳)

## اوراګوی

د دلميراوګوستيني شاعري اثر:

### اور

درراکه زما د جرم شريک دئ، په يو کرار آواز د هوس د زمزمې سره دا وتړه، واوره ... زما کالي وکاږه، لکه باغوانان چي ګل پاڼي پاڼي کي، ته هم دغسي وکړه! ولي چي دا ويل سوي چي آرايش د ګناه مظهر دئ.

آه! غوښتل او ښکلا د ګناه مظهر دي. اما لڅتيا د جمال بې پايانه صفايي ښکاروي، زما ښکلي اندامونه وګوره، دا هغه بستر دئ چي د ښايي او هوس له ترکيب څخه جوړ سوی ...

محبوبه! خپل لاسونه دي خلاص کړه، او ما په غېږ کي ونيسه، په دې حال کي لکه خلاص وزری مرغه يا هغه ساز چي د نغمې اماده وي منتظر سه.

آه! اوس خاموشه اوسه ځکه ژر به و هغه ځای ته سفر وکړو چي خاوندان د ژوند تخم د جهان په تخمګاه کي پاشي.

اې څښتنه! زما ښکلی عشق و ما ته وبخښه، هغه عشق چي لکه ويني چي د کايناتو په رګو کي ګراني او هر ماښام اسمان ويني، رنګه ګوهر ښکاروي و ما ته راکړه.

(۲۵)

## جاپان

د موتوماروسنګه اثر:

### زماوړوکی

زما وړوکی پر لاري ځي، لکه پرنده پر لاري ځي مګر تر اوسه بال و پر نه لري، چي پر مځکه غوځار نه سي.

زما وړوکی په زحمت ځملي، چي لار ورکه نه کړي، ابي رنګه آسمان زموږ مځکه احاطه کړېده، او په لايتناهي فضا کي هموار دئ، تر دې ابي رنګه آسمان لاندي طلايي لمر د ښکلي سيند موجونه پر ښور راولي، د مځکي له زړه څخه تازه نسيم پاڅېږي.

* * *

لاري کله پورته او کله کښته ځي،

وګړي په هغه کي کله پیدا او کله ورکېږي، صحنې کله تبدیل او کله تاریکه کېږي. زما وړوکی پر لاري ځي د هغي وړوکي سایې ځخه چي د ده ځخه پر مخکه لوېږي په حیرت کي دئ ... دی په زحمت خپلي پښې پورته کوي، او کوم شی چي پر مځکه ویني په زحمت ئې راپورته کوي، او بیا ئې و بلي خوا ته غورځوي، دا نېکبخت وړوکی کوښښ کوي چي زما ځخه وتښتي ... کله زما ځخه په خپلو وړوکو قدمو ځغلي او راځخه لیري کېږي. ځومري تېزي دي د دې وړوکي پښې ...

هغه پینه دوز چي د جادې په اړخ کي ناست دئ، دا زما وړوکی ورته ولاړ دا سپین ږیری او زوړ چي د خولۍ پیک ئې پر تندي سایه اچولې زما د طفل ځخه پوښتنه کوي او کله ئې خپلي عینکي له سترګو لیري کړي او یو ګړی د دې وړوکي سره شوخي کوي.

(٢٦)

## ونزوېلا

د روغینو بلانکوفومبونا اثر:

### اې شاعره!

اې شاعره بېهوده د قافیې د ځنځیر تړلو له پاره و هغه ګوهر فروش ته مه ځه چي غاړه بندونه خرڅوي ... بې جهته د سوهان او غیچي فکر مه کوه، ځکه سوهان او غیچي و هیڅ ترانې ته ځلا او لوړوالی نه ورکوي، که غواړې چي حقیقي شعر ته ورسېږې، نو د عشق لمن ټینګه کړه، د عشق او غم لار واخله.

د عاشقو له بې اصله او دلپذیره خیالو ځخه خبر سه، د زړه اضطراب او د رازونو هیجان وپوښته ... د عاشقانو ماجرا جستجو وکړه چي لکه د پسرلي شګوفه غوړېږي او رژېږي، د هغه شي په سراغ پسي لاړ سه چي کله له سترګو اوښکي بهوي او کله پر سرو شونډو نیمه خندا پیدا کوي.

اې شاعره!

واوره بهترین شعر د ژوند شعر دئ، دا شعر د شپې له غم انګېزه خاموشۍ زده کړه، په دریاب کي د کښتۍ حرکت د هغو د ګلانو ډکو لارو چي د ناپېژندونکو ولو و خوا ته ځي وګوره، د تریخ سبا، د هغو مچو له خوند چي تر اوسه نه دي سره رد و بدل سوي وړغېږه ... زما ځومره ښه له هغه چا ځخه راځي چي سرګردانه ژوند لري ... ځومره مي ښه له هغو کولیانو چي د خلکو کالي وړي یا له شاعرانو یا له مسخره سوي کسانو ښه راځي ... ځومره آرزو لرم چي همېشه مي کور پر غاړه او د سبا د نسیم او ښکلو ګلو په مصاحبت کي واوسم.

(٢٧)

## هند

د ټاګور اثر:

### زما ملګری

ته د ژوند او مرګ له حدودو ځخه لیري ولاړې ستا دربار د نورو له پلوشو ځخه ډک دئ.

ته په آسمانونو کي یې! د ژوند او مرګ له حدودو ځخه دباندي، زه په دې نه

پوهېږم چي زما دا زړه په کومه خبره دومره ډېر خوشحاله دئ، زما ستر ګي د آسمان لور ته اوړي، ما ستا خوا ته دواړه لاسونه در اوږده کړي دي او ولاړ یم.

زما ملګرې!

ته د مرګ او ژوند د حدودو څخه دباندي ډېر لیري ولاړ یې او هغه څوک چي ستا په زړه کي یو او یوازي دئ هغه د دنیا په غمونو کي ډوب او مغروق مه پرېږده، کله کله د کور له چارو څخه ځان وزګاروه او د هغه چا نغمې مه بندوه چي یوازي په دغه زړه کي استوګنه لري او پرېږده چي د ده دغه د زړه نغمې څلورو خوا و ته وبهېږي، ته دی پرېږده چي په دې دنیا کي د دې دنیا نازونه وړغوي.

(۲۸)

## چیني ادب

د چیني شي کنګ څخه:

### د ګهیځ پرتم

د ګهیځ پرتم پر ما باندي پر بوت.

سپین، ارغواني، شنه او سره ګلان پیکه سول، په شنو زرغونو کي د یوه شي کنبهار دئ ما داسي وګڼله چي د ده د پښو کړپی دئ چي زه یې اورم هلته چي یو ملخ خرهار لري.

زه هغه وخت غره ته وختم چي سپوږمۍ بربښېده او ما دی ولید چي پر جنوبي لار تی.

زما زړه د ده لوړتیا ته کښته کښته کېدئ.

خپل بادار ته ګورم

دغه ګودر لا تر اوسه ډېر پاتې؟ لري او پر دې ګودر باندي اوږد غځېدلي دي، زه خپل بادار ته انتظار کوم، د ګودر تر غاړو پوري یو میل ولاړ دي، چوغکه د خپلي مادې سره چونګېږي، خو زما بادار خنډېدلی دئ، لا تر اوسه سر او لاسونه ښوروي او د نورو یون هم پای ته رسېږي، خو زه د خپل ملګري انتظار لرم.

(۲۹)

## عربي ادب

منفلوطي مصري:

### د سپوږمۍ سره راز

اې ځلېدونکې سپوږمۍ!

ته په هسک آسمان کي لکه یوه ښایسته ناوې ښکارېږې چي خپل سر دي د فلک له کړکۍ څخه را ایستلی او په غاړه دي د ستورو روڼ ځلېدونکی امېل ځوړند کړی دئ، ته د هغه باوقاره او واکمن په څېر یې چي پر تخت ناست وي او د ستورو په شان ښکلي یې چارچاپېره ولاړ وي.

ته هغه سپېځلې هنداره یې چي تل ستا په شاوخوا کي د برېښنا شغلې دي، او د هغه چینې په شان یې چي ستا له خولې څخه د پلوشو ځلېدونکي ویالې بهېږي، ته هغه تنور یې چي د قدرت لاس پر تا کار کړی او د ستورو په شان بڅرکي له تا څخه و هر لور ته الوزي.

اې ځلاندې سپوږمۍ!

ته پر لوړو ژورو ځمکو، غرو او شېلو، د

امن او وحشت پر ځایو پلوشې غورځوي، د
ودانو او ورانو څخه خپله روڼا نه سپموې، آیا
کولای سې چي زما پر تیاره نفس روڼا
واچوې او تیاره یې لیري کړې؟ آیا کولای
سې چي د اندوه او غم اوريځي چي زما پر زړه
باندي یې سیوری خپور کړی او تیاره یې
پکښي اچولې ده خورې ورې کړې؟

اې خلاندي سپوږمۍ!

زه او ته سره یو شان او یو راز یو، ځکه
ته پخپل آسمان کي یوازي او زه په ځمکه کي
هیڅوک نه لرم، او موږ یوه د مقصد لار په
آرامي سره پرې کوو او په مات زړه سره
لنډوو، نه موږ چا ته آزار رسوو او نه څوک په
موږ غرض لري.

(۳۰)

پارسي ادب

## ایران

له آسیای جوان څخه:

## اې میني

اې میني! هغه ګلونه چي خپل په
لمن کې لرې د لاري په بغل کي کښېږده
ځکه زه د هغو ګلانو سره کار نه لرم هغه د
جادې په بغل کي کښېږده چي د غروب په
وخت کي سودا زاده ګان له هغو څخه ګېډۍ
وتړي او په خندا یې یوسي.

اې میني! ته هغه مشل چي د پروانې
پر و بال سوځي په لاس کي ونیسه ځکه هغه
لار چي زما د رسېدلو له پاره باید طی کړې
هغه ډېره اوږده او تاریکه ده، پام کوه چي د
هغه د لړمانو له آزار څخه په زحمت نه سې.

په ډېره کراري لکه پر وښته چي ځې
رارهي سه، چي زه خپل د عزیمت وخت
دروښیم، د سبا څخه تر ماښام پوري که
غواړې چي زما د آواز اورېدل دي غرض وي،
نو د هغه نغري ایرې وګوره چي ژر له اوره
پاته سوي وي، په پوره اطمینان را داخل سه
چي زه دي په هر نا اشنا ځای کي پېژنم،
راسه خپل مشل دي د زهرو د سیښې له اړخ
سره کښېږده او هغه په وینو لړلي خنجر ته
وګوره ولي د زهرو و سیښې ته په حیرت
ګورې او په وینو لړلي خنجر ته دي په حیرت
سترګي نیولي، آیا تا د دې صفت نه دئ
اورېدلی ... ته ولي ځان وړونکې خندا کوې،
زه هغه مریض یم چي غوښتل دي له ښو یې
واچوې، نو راسه کښېنه، زما رېږدېدلي
لاسونه، داغ تندی او تېېدلی زړه وګوره.

زه نه غواړم چي خپله ماجرا و تا ته
ووایم، ولي چي ته تر ما ښه په پوهېږې، زه نه
پوهېږې چي آینده به څه راسره وکړې؟

اې میني هغه راز ژر وباسه چي په زړه
کي دي دننه ساتلی دئ، و سترګو ته مي مه
درېږه تر اوسه درپوهېږم چي لکه پخوا زړه
دي ډېر سخت دئ، مګر ته نه پوهېږې چي
زه لکه پخوا هغه ډول نه یم، ځکه د زوړوالي
لښکر مي پر زلفانو هجوم راوړی او پوست مي
مړاوی سوی مګر زه د دې احساس نه سم
کولای چي څومره ضعیف یم؟

اوس بله زمانه ده چي ستا څخه
مرسته غواړم نو یو څه مروت خپله پېشه
کړه.

بیا دي هغه نوم یاد که چي لکه خنجر

زما زړه څيري. بيا هغه مه تکراروه ستا دي په هغه مشل قسم وي، چي د ځان سره دي راوړی، چي بيا هغه مه رايادوه چي د اورېدلو طاقت يې نه لرم.

اې خطرناکه مېلمه ! ستا څخه هيله لرم چي بيا هغه کلمه چي زما حال بل ډول کوي مه يادوه ... يوه بله دا ډول کلمه پيدا کړه چي زما د اولين نېش تلافي وکړي او نور مي ترمخنی کلمه ونه سوځي.

(۳۱)

پښتني ادب

**افغانستان**

بېنوا:

## نيم ساعت دمخه

ستا په آرزو د اسکېرلي يتيم په څېر ژړېدم، اوښکي مي د وصل په لټون پسي هر لور ته لالهانده بهېدلې.

نورو ټولو کايناتو يو خاموشانه سکوت اختيار کړی و.

يوازي زما د زړګي پاڼه ستا د محبت د ثبت له پاره په کوګل کي غوړېدلې پرته وه.

کله کله به مي په لايتناهي فضا کي ستا د ميني هغه نرم آواز اورېده چي زه يې ستا و خوا ته بللی وم.

زه او ټول موجودات مي ستا د راتلو په انتظار کي بلل، ستا په خيال مي سترګي سره ورغلې.

ته مي وليدې چي د ميني کتاب دي غوړولی او ما ته دي په خپل معصومانه او له ميني ډک تبسم سره وکاته، د ځان و خوا ته دي وبللم څو وراه دي د هغه کتاب دا جملې راته تکرار کړې :

"زه تا پېژنم – د ميني اور – د وصل آرزو...".

آه ! هم هغه نيمه شپه ده فقط دېرش دقيقې تېري سويدي بيا ته نه يې ستا پر ځای په دې توره خونه کي بېله خپل غمګين زړه بل څوک راسره نسته.

پوه نه سوم چي څه و؟

دا خوب و که خيال چي ستا په ديدار يې مشرف کړم؟

کشکي ټول ژوندون همدا خوب وای.

آه ! نيم ساعت دمخه !

## وروستنی وينا

ګرانو لوستونکو !

څرنګه چي د نړی د دېرشو ممالکو د ادبياتو يوه يوه ټوټه مو ولوستله، ښايي چي زما څخه دي ډېر داسي ممالک پاته وي چي د هغو د ادبياتو نمونه دي په لاس نه وي راغلې، نو هيله ده چي نور محترم ليکوال دي هم په دې پسې څارو اوسي او که د کوم داسي مملکت ادب پيدا کړي چي هغه دي زما په سلسله کي نه وي نشر سوی، ښايي چي رادې وړي او نشر دې کړي، چي که لوی څښتن بيا کوم داسي يو خلمی پيدا کړی چي په دې خوا کي يې زيار ايسته او يو ځای کول يې چي يو بسته کتاب خني جوړ کړي، نو به د هغه سره دا زموږ يو کومک وي.

پای

# د سقراط تلپاته نظريات

ليکوال: ژنه فين



مترجم: واحد فقيري

دوهم کتاب

دوهم فصل

**د سقراط او مشر زوی، لامپروکليس، تر مينځ والدينو ته د احترام په باره کې بحث**

سقراط کتل چې د هغه مشر زوی، لامپروکليس، د خپلې مور سره په خورا قهر او غضب خبرې کوي. سقراط د خپل زوی سره داسې بحث پيل کړ: «زما بچيه دلته راسه. ايا ته هغه خلګ پېژنې چې ناشکره ئې بولې؟» ځوان زوی ئې په جواب کې وويل: «خورا ډېر.» سقراط ورته وويل: «ايا ته پوهېږې چې هغوی ولې په دې نامه يادېږي؟» لامپروکليس په جواب کې وويل: «مور يو داسې کس ته ناشکره وايو چې کله ښه او نېکي ورسره وسي، خو کله چې واک ولري بيا هغه نېکي نه ادا کوي.» سقراط وويل: «نو بنا، زه فکر کوم چې ناشکري

يو راز بې عدالتي ده؟» لامپروکليس په جواب کې وويل: «زه هم همداشان فکر کوم.»

سقراط خپلو خبرو ته داسي ادامه ورکړه: «ايا کله هم تا په دې باب سوچ کړی دئ چي د دې بې عدالتۍ ماهيت څه ډول دئ؟ د مثال په توګه، دا يوه بې عدالتي ده چي د خپلو ملګرو سره بد چلن وکړو، مګر بر عکس که چيري د دښمن سره همدا کار وسي، څو هغه دې ته متوجه کړای سي چي خپل اعمالو ته پام وکړي، هله همدا سلوک عدالت دئ. نو بنا، د همدې استدلال سره سم، دا بې عدالتي ده چي د خپلو يارانو سره ناشکره واوسو، مګر د غليمانو په مقابل کي دا عدالت دئ.» د سقراط زوی وويل: «د پاخه عقل په تله کې، او تر ښه ډېر چورت وروسته، زه فکر کوم چي له هر چا سره بې عدالتي کول يو جرم دئ.» سقراط همدلته وويل: «بيا نو، که چيري ناشکري يوه بې عدالتي وي، له دې څخه دا استنباط کېدای سي چي هر څونه چي احسان غټ وي په هغه اندازه ئې د ناشکرۍ بې عدالتي هم ستره وي.»

لامپروکليس له دې خبرو سره خپله موافقه وښوده، او سقراط خپل بحث ته داسي ادامه ورکړه: «ايا هلته نور داسي وظايف سته چي والدينو ته د اولادونو د مسئوليت په پرتله مهم وي؟ څکه همدې مور او پلار دوی پيدا کړل، او داسي ئې را ستر کړل چي د طبيعت ټول عجايبات او کارونه وګوري، او د هغو ښو شيانو څخه ګټه واخلي چي طبيعت د هغوی په اختيار کي ايښي دي. په بل عبارت، ژوند دونه خوږ دئ چي زياتره خلګ تر بل هر څه تېرېږي څو خپل ژوند وساتي. د ژوند اهميت تر هغه ځايه رسېږي چي حکومتونو د اعدام مجازات يوازي د غټو جناياتو له پاره ټاکلي دي، څکه هلته بل هيڅ داسي موثره مانع نسته چي د فاسق قهر راايسار کاندي مګر د مرګ د اندېښنه او دغدغه. بلخوا، واده يوازي د دې له پاره نه دئ چي زموږ غريزه راارضا کړي، معنا هغه غريزه چي طبيعت په خورا قوت سره په دواړو جنسونو (نر او ماده) کي ايښې ده، څو خپل نسل ته دوام ورکړي. کېدای سي چي همدا شهواني غريزه په ډېرو ارزانو لارو باندي ارضا سي، حتی زموږ په کوڅو، محلو او نورو ځايونو کي. مګر کله چي موږ فيصله وکړو چي له يو چا سره واده کوو او دې قرارداد ته غاړه ايږدو، موږ داسي ښځي انتخابوو چي ښه اندام ولري څو زموږ ماشومان هم ښه غړي او جسامت ولري، او زموږ ښځي داسي طبع او شخصيت ولري چي زموږ د ژوند خوشحالي را تضمين کاندي. کله چي دا کار وسي، بيا نو د يوه مېړه وظيفه دا ده چي خپله ښځه او کور وساتي او د هغوی له پاره يو ژوند برابر کړي، خپلو کوچينانو ته رزق او داسي وسايل او امکانات برابر کړي چي په ژوندانه کي ګټور او د هغوی سره د يوه با سعادته ژوند د کولو په لاره کي مرسته وکړي. بل پلو، د کور د مېرمني تشويشونه او کړاوونه خورا زيات وي، څکه هغه بايد د خپلو بچيانو غم د تولد څخه مخکي هم وخوري. د حاملګۍ په دوران کي مور يوازي غذا خپل اولاد ته نه برابروي، بلکي ښځه د خپل وجود يوه برخه په خپل اولاد باندي خوري، څو هغه ته ژوند ورکړي. د زېږېدو پر وخت کله چي مور په سختو دردونو کي وي، خو تر تولد وروسته سمدستي خپل بچي ته خپل تی او شيدې ورکوي، او تل د خپلو بچو خيال ساتي او د هغوی سره مينه لري. همدا ټول کارونه مور د خپل ناتوان بچي سره کوي، په دې وخت کي ماشوم له عقل څه خاصه برخه نه لري، او ماشوم

حتی په دې هم نه پوهېږي چې ولې ئې مور ورسره داسي مهربانه ده، او حتی د خپلو ضرورتونو له پاره د خپلي مور څخه څه غوښتلای هم نه سي. اما مور په دې وخت کي د خپل نوي ماشوم د ژوند او خوشحالۍ له پاره د ميني او محبت سرچينه وي. هغه شپه او ورځ او هره شېبه د خپل کوچني د ارام له پاره هلي ځلي کوي او دا ټول خدمتونه پرته له دې کوي چي کومه ورځ به د همدې سترياوو په بدل کي څه تر لاسه کړي. له دې را وروسته، کله چي ماشومان غټان او د زده کړي سي، پلرونه ئې د ژوندانه هغه ښېګڼي او ښې لاري چاري ورښيي چي د ژوند په بهير کي ورسره مرسته وکي. که چيري پلرونه داسي استادان وپېژني چي د تدريس ښه طريقه لري، هغوی خپل بچيان د همدې استادانو سره شاګردان کوي او په قيمت او مصارفو کي ئې چندان ری نه وهي. نو بنا، د پلرونو همدا اقدام دا ثابتوي چي هغوی بل هيڅ شی دونه نه خوشحاله کوي لکه چي بچيانو ئې د تقوا او راستۍ لاره غوره کړې وي.»

د سقراط زوی وويل: «بې له شکه. اما که چيري زما مور همدا خدمتونه کړي وای، او حتی که چيري هغې تر دې سل ځله اضافه هم کړي وای، خو بيا به هم هيڅ د هغې بد خلقي نه وای زغملې.» سقراط ورته وويل: «ايا ته فکر نه کوې چي د مور غوسه بايد وزغمل سي؟» زوی ئې جواب ورکړ: «نه، د يوې دا شان يوې مور لکه زما.» سقراط ادامه ورکړه: «هغه څه عجب او غريب شی دئ چي مور دي ستا سره کړی دئ؟ ايا هغې ته په غاښ کړی يې، ايا هغې ته په لغته وهلی يې، لکه حيوانان چي په غوسه وي؟» لامپروکليس وويل: «هغه يوه داسي ژبه لري چي تر توري تېره ده، او هيڅ انسان ئې تاب نه سي راوړلای.» سقراط په جواب کي ورته وويل: «او ته، تا به په کوچينوالي کي د خپلو جنګونو او خشنګيو په وجه خپله مور څونه زهيرولې وي؟ هغې ته به دي په شپو او روځو څونه زحمت ورکړی وي؟ کله چي به ناروغه سوې، هغه به څونه درسره په عذاب کي وه؟»

د سقراط زوی په جواب کي وويل: «ما هيڅکله نه يوه داسي خبره او يا کار کړی دئ چي زما مور دي حتی په وشرمېږي.» سقراط وويل: «های، های! ايا ستا له پاره د خپلي مور اني غوسه په حوصله اروېدل د هغو اداکارانو تر کار ګران دئ چي د سټېج پرسر يو بل ته سختي خبري کوي؟ اداکاران په اساني سره همدې سختو خبرو ته غوږ نيسي، ځکه هغوی پوهېږي چي يو پر بل باندي تورونه په دې مقصد نه کوي چي يو بل ته صدمه ورسوي. کله چي اداکاران يو بل تهديدوي، دوی دا کار په دې غرض نه کوي چي ها بل اداکار ته تاوان ورسوي. ته هم د خپلي مور په نيت او مرام ښه واقف يې، ځکه ته پوهېږې چي د هغې سختي خبري چي تا ته ئې کوي، له کرکي څخه منشا نه اخلي، بلکي مور دي ستا سره زياته مينه لري او ته نهايت پر ګران يې. اوس نو، ته څرنګه له هغې څخه خوابدی کېدلای سې؟ ايا ته تصور کوې چي مور دي ستا په باب بد نيت لري؟» لامپروکليس ورته وويل: « نه، هيڅکله نه. ما کله هم د خپلي مور په متعلق داسي فکر نه دئ کړی.» سقراط ورته وويل: « دا هغه مور ده چي ته پر ګران يې. يوه داسي مور چي کله به ته ناروغ وې، هغې به تر خپل وسه کوښښ کاوه چي ته ژر جوړ سې. تل به ئې هڅه کوله چي ستا ټول ضرورتونه رفع وي. ستا له پاره به ئې هسک ته په شپو شپو دوعاوي کولې، اما بيا هم ته له دې ټولو سره سره وايې

چي دا ښه مور نه ده. حقیقت دا دئ، بچو، که چیري ته د خپلي مور سره ژوند نه سې کولای، زه تا ته همدااوس وایم چي ته به یو ارام ژوند و نه لرې. ما ته دا ووایه، البته په لنډه توګه، چي ایا ته په دې باور لرې او کنه چي تا باید په خپل ژوند کي یو چا ته احترام درلودلی وای؟ او که ایا ته نه په عمومی توګه او نه هم په خصوصي توګه د هیچا کومک ته محتاج نه یې؟» د سقراط زوی په جواب کي وویل: «نه، برعکس زه تل هڅه کوم چي د ګردو خلګو مرسته او ښه نظر وګټم.»

سقراط ورته وویل: «ښایي ستا له پاره به دا ضروري وي چي د خپل ګاونډ ښه نظر او مرسته تر لاسه کړې، ځکه ښایي هغه یوه ورځ ستا په درد وخوري، مثلاً کله چي ستا اور په کار وي، او یا هله چي پر تا باندي کومه بله بده حادثه راغلې وي ښایي ستا ګاونډ تر بل هر چا لومړی کس وي چي ستا غم وخوري.» لامپروکلیس وویل: «بلې، زه همدا کوښښ کوم.» سقراط خپلو خبرو ته ادامه ورکړه: «که چیري تا د یو بل ملګري سره په بحر یا وچه کي چیري سفر کاوه، ایا دا به ستا له پاره بې تفاوته وای چي پر هغه ګران وای او کنه؟» خوان زوی ئې په جواب کي وویل: «نه، قطعاً نه.» سقراط په جواب کي وویل: «ایا ته دونه له خپل مور څخه لیري سوی یې چي د پردیو خلګو دوستي غواړې خو د هغه چا ملګرتیا نه غواړې چي تل باندي ګران یې او تل ستا ښه غواړي؟ ته به پوهېږې چي جمهوریت د ورو ناشکریو او احسان نه منلو په ارتباط ځان نه اندېښمنوي، ځکه جمهوریت د دغه راز جرمونو له پاره وخت نه لري. ایا جمهوریت د هغو کسانو له مجازاتولو څخه غفلت نه کوي چي ښه ورسره وسي خو چي وخت ئې راسي هغوی په خپل وار د احسان په بدل کي احسان نه کوي؟ اما هغو خلګو ته چي خپلو والدینو ته احترام نه کوي، هغوی ته یوه خاصه سزا سته. د قانون په سترګو کي هغه یو مجرم او غیرقانوني شخص دئ، او قانون هغه ته اجازه نه ورکوي چي د جمهوریت په کوم دفتر کي مامور سي، ځکه په مور کي یو پوخ پند او اخلاقي مقوله دا ده چي د یوه ناپاکه لاس قرباني نه د خدایانو په نزد کي قبلېږي او نه هم جمهوریت ته کومه ګټه لري. هیڅوک به دا باور و نه لري چي د دغه شان کرکټر درلودونکی شخص به یو عالي او مهم کار انجام کړي، او نه به هم یو ښه او متقي قاضي سي. همدا مجازات د هغو کسانو له پاره هم تجویز سوي دي چي د خپلو مور او پلار د جنازې او دفن په مراسمو کي غفلت کوي. او د دې خبري اهمیت د هغو کسانو په ژوند کي ډېر لیدل کېږي چي د جمهوریت د ماموریت او خدمت له پاره نوماند وي.

«نو بنا، اې زما بچیه، که چیري ته عاقل او هوښیار یې، او غواړې چي د لوی خدای رحمت درسره وي، ته باید همدا اوس له هسک څخه د هغه جرم د بخښلو له پاره عفوه وغواړې چي د خپلي مور په مقابل کي دي وښود، او دا به هم وایې چي بیا به هیڅکله دا شان ناشکري و نه کړې. او ها، پام کوه چي نور خلګ په دې پوه نه سي چي تا د خپلي مور سره دا شان سپک سلوک کړی دئ، ځکه بیا به ټول عالم تا ته شا کړي، او خلګ به وایي چي څرنګه په هغه چا اعتماد وکړو چي حتی د خپل مور او پلار احسان نه مني.»

نور بیا ...

لیکوالان: خالد اقبال یاسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثاراحمد آریا

## نوبل جایزه وړونکي ادیبان

# کرستوفر ایوکن

(Eucken, Christophe)

(۵، جنوري ۱۸۴٦م - ۱۴، سپتمبر ۱۹۲٦م)

**(لسمه برخه)**

دغه الماني فلیسوف ته په ۱۹۰۸م کال نوبل جایزه ورکړه سوه. ایوکن یو ایډیالیست (Idealist) فلیسوف وو. نوموړی په دې نظر وو، چي انسان پر ورځني او فزیکي ژوند سربېره یو باطني او روحاني ژوند هم لري. هغه خپله نظریه تعقیب کړه او هغه ئې په روحاني تلاښ بدله کړه.

د ایوکن شهرت لنډ مهاله وو. اوس مهال د هغه لیکني چنداني نه لوستل کېږي. هغه پر فلسفې سربېره مذهبي کتابونه هم ولیکل. داسي فکر کېږي، چي ایوکن ته د الفرېډ نوبل د هغه وصیت سره سم جایزه ورکړه سوه، چي ویلي ئې وو: نوبل ادبي جایزه باید هغه چا ته ورکړه سي، چي "د نوي نظریې (ایډیا) په رامنځته کولو کي ئې د پام وړ کار کړی وي".

ریډولف کرسټوفر ایوکن د المان په ایورچ (Aurich) کې زوکړی دئ. هغه په کوچنیوالي یو نتلی یتیم وو. د پلار تر مړینې وروسته ئې یوازینی کوچنی وروړ هم مړ سو. د هغه مور یوه مذهبي ښځه وه. هغې د کور یوه برخه په کرایه ورکړه او په هغو پیسو ئې د کور خرځ او د ایوکن د ښوونې او روزنې لګښت ته اوړه ورکړه.

ایوکن په ایورچ کې د زده کړې پر مهال د ویلهیلم ریوټر (Wilhelm Reuter) د شخصیت او نظریاتو څخه اغېزمن سو. ریوټر د حکمت (الهیاتو) او فلسفې عالم وو. هغه تر لومړنیو زده کړو وروسته د ګوټنجن او برلین په پوهنتونونو کې فلسفه، تاریخ او فلالوژي (Philology) ولوسته. په دې مهال کې بیا هغه د ایف، اې، ټرینډلین برګ F.A) (Trendelenburg له نظریاتو څخه اغېزمن سو. ایوکن د فلسفې د تاریخي او اخلاقي تعبیر په برخه کې تر ډېره وخته د نوموړي له نظریاتو څخه اغېزمن وو. هرمان لوټز (Hermann Lotze) هم د هغه د فلسفې له استادانو څخه وو. د فلسفې په برخه کې نوموړي ته د لوټز هغه نظریات د باور وړ نه ول، چې پر منطق او تعقل ولاړ ول، خو د ټرینډلن برګ هغه نظریات ئې بیا منلي ول، چې د فلسفې، تاریخ او مذهب د اړیکو په اړه هغه وړاندي کړي ول. ایوکن د ارسطو پر ژبه باندي د یوې مقالې په لیکلو سره د کوټنجن پوهنتون څخه ډاکټري واخیسته.

تر ډاکټرۍ وروسته ایوکن په یوه ښوونځي کې تدریس پیل کی. دغه تدریس پنځه کاله دوام وکړ. په دې دوران کې د نوموړي دوې رسالې چاپ سوې. دغه رسالې پر ارسطو لیکل سوي وې. همدارنګه هغه په ۱۸۷۲م کې د ارسطو پر منطق باندي یو بل کتاب (Die Methode der Aristotelischen) هم چاپ کړ. په ۱۸۷۱م کې نوموړی په پوهنتون کې د پروفیسر په توګه مقرره سو. له ۱۸۷۴م څخه وروسته هغه په جینا (Jena) کې د فلسفې د پروفیسر په توګه دنده پیل کړه. تر ده مخکې پر دغه بست کیونو فشر (Kuno Fischer) کار کاوه. په ۱۹۲۰م کې هغه تقاعد سو. تر تقاعد پوري هغه په جینا کې دنده تر سره کوله. د فلسفې استادانو د هغه زیړ اسلوب ته د شک په سترګه کتل. هغوی د نوموړي لیکنې له فلسفي اصطلاحاتو او څرګندو تعریفونو څخه خالي بللې. ایوکن خپل فلسفي افکار د اخلاقي فعالیت (Ethical Activism) په نامه یادولې، خو برتانوي فلسوف برنارډ بوزانکیټ (Bernard Bonanquet) د نوموړي دغه نظر رد کړ. بوزانکیټ د شخصي تېرې (Personalist Heresis) په وړاندي د پخوانیو عقیدو دفاع کوله. په ۱۹۱۴م کې هغه په خپله یوه لیکنه کې، چې په (کوارټرلي ریویو) کې چاپ سوه، ولیکل: "د ایوکن ډېري لیکنې پر فلسفي علومو سمې او دقیقې زیاتونې نه دي. (هغه) خپل شخصي نظریات د اخلاقیاتو تر عنوان لاندې وړاندي کړي دي".

کله چې ایوکن ته نوبل جایزه ورکړه سوه، نو هغه په نړۍ واله کچه مشهوره سو. څو پوهنتونونو نوموړی د لکچرونو له پاره دعوت کی. په ۱۸۹۰م کې د هغه کتاب (The Problem of Human Life as View by the

(Great Thinkers چاپ سو. دغه کتاب خورا ډېرو خلکو ولوستی. په ۱۹۱۱م کي نوموړي په انگلیستان کي لکچرونه ورکړل. په ۱۹۱۲ او ۱۹۱۳م کي هغه د استادانو په یو علمي سفر کي د امریکا هارورډ پوهنتون ته ولاړی. هلته نوموړي پر نورو کسانو سربېره له اینډریو کارنیگي او تیوډور روز ولیټ سره هم ولیدل. هغه په سمت کالج، لورول انستیتیوټ او کولمبیا پوهنتون کي ویناوي وکړې.

د لومړۍ نړۍ والي جگړې پر مهال هغه د وطن پرستۍ تر اغېز لاندي راغی او په یوه لیکنه کي ئې ولیکل، چي د وژنو له امله المان باید پړ و نه بلل سي.

ایوکن په ۱۸۸۲م کي له آیرن پاسو (Irene Passow) سره واده وکی. د هغه یوه لور او دوه زامن پیدا سول. نوموړی د ۱۹۲٦م کال د فروري د میاشتي پر ۱۵مه په جینا کي مړ سو.

ایو کن تمایل درلود، چي خپل لوی، لوی آثار په وار، وار تر نظر تېر کي. هغه پر خپل نامتو اثر (The Problem of Human Life as View by the Great Thinkers) او نورو لیکنو باندي څو پلا زیاتوني وکړې او هغه ئې څو لسیزي له نویو زیاتونو او کمونو سره چاپ کړې. د هغه ځیني آثار په لسونو ځله چاپ سول. ایوکن د فلسفې پر تاریخ باندي یوه لیکنه وکړه. دغه لیکنه په ۱۹۰۷م کي د (The Main Currents of Modren Thoughts) تر سرلیک لاندي چاپ سوه. نوموړي په دې لیکنه کي هڅه کړې وه، چي روحاني ژوند ته نوی مفهوم ورکړي.

په ۱۹۲۱م کي د هغه یوه بله لیکنه د (سوشلزم اینډ انیلسز) په نامه خپره سوه. په دې لیکنه کي هغه د انسان د فطرت په اړه پر سوشلزم نیوکه وکړه. د نوموړي په وینا روحانیت په ټولنه کي د انسان د مقام په ټاکلو کي لوی رول لري. ایوکن په ورځني ژوند کي د روحاني ارزښتونو پلوی وو. که څوک د نوموړي دغه دریځ ته پام وکړي، نو ویلای سي، چي د هغه افکارو له سوشلزم سره ډېر توپیر درلود. سوشلزم انساني خپلواکي محدوده وي او د روحاني ارزښتونو رول ریچې، ریچې کوي.

د ایوکن په نظر انسان د روح او فطرت یو امتزاج دئ. د هغه په عقیده انسان باید د روحاني ژوند له پاره هڅه او هاند وکړي، تر څو پر خپل غیر روحاني فطرت باندي غالبه سي. د نوموړي په باور په دې هڅه کي وجدان ځانگړی رول لوبولای سي.

ایوکن فکر کاوه، چي مسیحیت تر ټولو لوړ دین دئ. هغه د کارل مارکس غوندي مسیحیت ته د خلکو له پاره د افینو په سترگه نه کتل. البته هغه د دې نظریې پلوی هم نه وو، چي زاړه مذهبونه او د هغو عقاید دي له یو چا سره د ژوند د مفهوم په روښانه کولو کي مرسته وکړي. هغه مسیح علیه السلام ته د خدای (ج) په سترگه نه کتل، بلکي هغه ئې یو داسي انسان باله، چي ساری ئې پر دې نړۍ نه وو او مستقیمه پیروي ئې هم ناممکنه ده.

(۷)

# د کابل پېغله

(په زړه پوري اسلامي تاریخي ناول)

لیکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسین صدیقي
ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

## توطیه

ارشد بیرته راوګرځېد. هغه نه یوازې پر خپل بریالیتوب ډاډه وو، بلکي مطلق یقیني وو. دا ځکه چي غله پر شا تمبول سوي ول چي یا به وژل کېدل او یا به هم تسلیمېدل. خو دې ته ډېر حیران وو چي خط د مرستیال واکمن دئ لاکن امضائې د شوربازار د حضرت ده.

د شوربازار حضرت یو باسواده مولوي وو، او خلکو په ډېر نېک او سپېڅلي نظر ورته کتل. دا لا څه، حکومت هم د هغه احترام کاوه. په عامو ملایانو او پیرانو کي ئې هم لوړ حیثیت او مقام درلود. خو باطن ئې لړلی او ناپاک وو. له تعصبه هم ډک وو. د خلکو پر خبرو ئې هم ژر غوږ نیوی او هغه به ئې بېله تحقیقه منل. دومره حریص وو چي د خلکو څخه به ئې دوې یا درې او څلور روپۍ هم د نذرانې په توګه اخیستلې.

له کله راهیسي چي حکومت پوځي پرسونل د پیرانو د بیعت څخه منع کړي ول نو له هماغه مهاله د ده عاید هم کم سوی وو. ده د دې کار سره مخالفت ښودلی وو او د امیر امان الله خان پر خلاف ئې سپکه ژبه استعمالوله.

هیواد پال او ولسپال افغانان د شوربازار د حضرت د دې کړنو څخه ډېر خپه سوي ول. خو څنګه چي هغه په عوامو کي اوچت مقام او حیثیت درلود نو د ده پر خلاف د ږغ پورته کولو څخه بیرېدل.

ارشد ځکه تعجب کاوه چي د مرستیال واکمن پر حُکم باید پخپله د هغه یا کوم عالي پوځي مقام لاسلیک وای، د شوربازار د حضرت امضاء ولې پر سوې ده؟! بس د همدې حُکم راهیسي د ده فکر ډېر خراب وو او ډېر افسوس ئې کاوه. ده د هماغه حکم احترام وکړ او بچه سقاو ئې پرېښود او له هغه ځایه بیرته پر شا راستون سو او هغه خای ته راغی چي قرارګاه ئې پکښې جوړه کړې وه او دغه

مأموریت ئې راپیل کړی وو.

دلته په رارسېدو سره ئې خپل ټول هغه پوځیان راوبلل چې د کلیو او دغه ټولي سیمي د وګړو د امنیت ساتلو له پاره ئې ځای پر ځای کړي ول. پر لارو چې ئې کوم سپاره پوځیان درولي ول، هغوی ئې هم بیرته راوبلل. کله چې هغوی ټول راورسېدل نو په ګډه مخ پر جبل سراج وخوځېدل.

پر ټوله لار باندي دی ډېر خپه او غمجن وو. د اشرف یا کوم بل چا سره ئې هیڅ خبري نه کولې. کله چې جبل سراج ته راورسېدل نو اول ئې د شېرخان په باره کي پوښتني وکړې. وروسته ورمعلومه سوه چې شېرخان او عبدالرحمن دواړه جوړ سوي دي او د هغوی رخصتي فقط یوه اوونۍ وه او بیرته کابل ته تللي دي.

ارشد یو خو دا چې ډېر خپه او غمګین وو، بل دا چې د شېرخان او حُسن جهاني په تګ سره نور هم پرېشانه او نا آرامه وو. هره شېبه ئې د سخت خپګان او ډېر اضطراب احساس کاوه. نو ځکه صرف یوه ورځ همدلته پاته سو او سبا مخ پر کابل وخوځېد. د خپل تګ خبر ئې د تلګرام په ذریعه خپل لوړ افسر ته ورکړ.

اشرف پوهېدی چې ارشد ډېر غمجن او نا آرام دئ. د هغه د غم غلطولو او پام اړولو له پاره ئې خپل ټول کوښښ کاوه خو هیڅ ګټه ئې نه لرله. ارشد نه موسکی او نه هم خندنی وو، بلکي مسلسل په خپل ځُرت کي ډوب وو.

هغوی منزل پر منزل بالاخره کابل ته ورسېدل. کله چې هلته قشلې (عسکري چونۍ) ته ولاړ نو تر هر چا مخکي ئې د شېرخان سره ولیدل. شېرخان د خپل دفعتاً راتګ له امله بخښنه ځني وغوښته او دی ئې د ماښام د ډوډۍ له پاره مېلمه کړ. ارشد چې له ځدایه همداسي غوښتل فوراً ئې د هغه بلنه ومنله.

شېرخان هم ولاړی او ارشد یو څه آرام وکړ. تر استراحت وروسته ئې غسل وکړ، پاک کالي ئې واغوستل او برابر ارګ ته روان سو.

کابل اوس د تېرو پنځوسو کالو مخکنی کابل نه وو. اوس هغه یو ډېر پاک او ښایسته ښار وو. سړکونه ئې پراخ او ډېر ښه ئې جوړ کړي ول. د ښاروالۍ لخوا د صفاکارۍ او روښنايي ښه انتظام روان وو.

د سړکانو د څنډو ویالې هره ورځ درې واره پاکېدلې. د هري کوڅې او محلې څخه هره ورځ زیات شمېر کراچي ګاډیو کثافات او فضله مواد ایستل او وړل. د شپې به برقي څراغونه لګېدل، بازار ښه ګڼه ګوڼه او رونق درلود. دوکانونه په بهرنیو شیانو او موادو ډک ول او تل د خلکو له پاره تیار ول.

د کابل ښار ته څرمه د باغ بالا او ارګ مشهوري کلاوي ولاړې دي. په باغ بالا کي عسکري قشله ځای پر ځای ده او په ارګ کي شاهي پوځ مستقر دئ. له همدې ځایه د شاهي محلونو او مانیو لړۍ پیلېږي. دا محلونه او کورونه ډېر پرتمین، لوړ او د کلا غوندي دي. په دې مانیو کي شنې باغچې، کروندې او منظرې سته چې زړونه تازه کوي.

د ارګ په باغچو کي د ماښام پر مهال د سپین کالیو افغانانو او هندوستانیانو ښه مجمع او ګڼه ګوڼه وي.

شېرخان هم د ارګ په یو کور کي اوسېدی. ارشد د حُسن جهاني سره د لیدو په خاطر په ډېره خوښۍ او تندۍ ګامونه اخیستل او پر مخ ورتلی. اول مسجد ته ولاړی او د مازیګر لمونځ ئې ادا کړ.

تر لمانځه وروسته د باندي راووت او بازار ته راورسېد چې دا مهال ډېره ګڼه ګوڼه وه.

خلکو ښه کالي اغوستي ول او په خوشحالۍ او بېغمۍ سره ئې سوداوي کولې او نور بیا د تفریح په ډول دوري هوري ګرځېدل. په دکانو کي ډېر ازدحام وو او خلکو د خپلي اړتیا او خوښي وړ شیان رانیول. خلکو پر خپلو کمیسونو سربېره جاکټونه او کرتۍ هم اغوستي ول. پر سرونو ئې خولۍ وې یا ئې بګړۍ تړلي وې. ځای ځای چادري (برقع) والي ښځي هم معلومېدلې، خو دغو ښځو نه د نارینه وو سره خبري کولې او نه هم نارینه وو هغوی آزارولې. موټرونو، بایسکلونو او ګاډیو هم پرله پسې تګ راتګ کاوه.

له همدې بازاره د ارګ لوړه او پرتمنیه شاهي ماڼۍ معلومېدله. دا ډېره ښایسته او برجسته ودانۍ وه.

ارشد دوري هوري دې ټولو شیانو ته کتل او ګامونه ئې اخیستل. کله چي لوی چوک ته ورسېد نو یو چا په نوم ور ږغ کړه. ده چي ورته وکتل یو زلمی وو چي د ده خوا ته را روان وو. تر رارسېدو وروسته ئې سلام وکړ او داسي ئې ورځخه وپوښتل: ارشده! کله راغلی یې؟

ارشد وعلیک ووایه او بیا ئې داسي ځواب ورکړ: بس همدا نن رارسېدلی یم.

ځوان: پر ښه وخت رارسېدلی یې. نن په کابل کي ستا غوندي حکومت پلوه ځوانانو ته سخت ضرورت دئ.

ارشد هغه ته په حیرت سره کتل او ورځخه ویې وپوښتل: ولي او ځنګه ضرورت دئ؟

ځوان: پر افغانستان باندي توري او طوفاني اوریځي راپورته سوي دي. پیران او ملایان د حکومت او امیر امان الله خان پر ضد توطیې کوي. هره ورځ هغوی پټي غونډي جوړوي. اعلیحضرت دا مهال د اروپا په سفر بوخت دئ، خو د سلطنت مرستیال سردار ولي محمد خان د ښورښي خلکو ځخه پوښتنه او ګروېږنه نه کوي. هغه قصداً تله تېروي او پر دې کارونو سترګي پټوي. زه بېرېږم مبادا چي هغه هم د یاغیانو تر اغېزې لاندي نه وي راغلی. په دغسي شرایطو کي د اعلیحضرت شتون او حضور حتمي وو.

ارشد: هو، ډېر پرېشانوونکي خبرونه دي.

ځوان: هو، ډېر. ځنګه سو آیا تا بچهٔ سقاو ونیوی؟

ارشد: یا، ما هغه محاصره کړی وو، تسلیمېدلو یا نیولو او یا هم وژلو ئې تر یو ساعت اضافه وخت نه نیوی، لاکن....

ځوان د ده خبري غوځي کړې او داسي ئې وپوښتل: آیا ستا ملګري پر شا وتښتېدل؟

ارشد: یا، مسعوده! ما ته پر دغسي مهال د نایب السلطنه یو فرمان راورسېد چي د شوربازار حضرت امضا کړی وو، او ما باید د بچهٔ سقاو تعقیب پرې ایښی وای او مخ پر کابل راخوځېدلی وای.

دغه ځوان مسعود نومېدی او داسي ئې وویل: ارشده! زه تر بل هر شي له همدې کاره ډېر بېرېدم. د شوربازار حضرت د ټولو یاغیانو سرغنه (مشر) دئ. هره ورځ د هغه په کور کي غونډي او جلسې کېږي، هغوی دا هڅي کوي چي اعلیحضرت ملحد او کافر وښیي. دغه یاغیان غواړي چي د بچهٔ سقاو په واسطه یو ښورښ راپورته کړي. زه به نن د ماخستن تر لمانځه وروسته تا دغي پټي غونډې ته بوزم.

ارشد: ته ځنګه دغه مخفي غونډې ته ورداخلېدلای سې؟

مسعود: د شوربازار حضرت پر ما باور کوي او داسي فکر کوي چي زه د ده سړی یم. ما په ظاهره ځان د هغوی ملګری ښودلی دئ

او ځکه نو د هغوی فتنه او دسیسه را معلومه ده. زه ځکه تا ته دا ټولي خبري کوم چې ته هم د اعلیحضرت وفادار او سربښندونکی یې. همدا اوس ته چیري ځې؟

ارشد: زه د شېرخان کور ته روان یم.

مسعود: دا خو ښه کار وسو، د ماخستن لمونځ په شاهي مسجد کي ادا کړه او دواړه به هماله سره ووینو.

ارشد: ډېر ښه، همداسي به کوو.

مسعود: ښه، د خدای په امان.

مسعود تر خدای په اماني وروسته روان سو خو ارشد د مسعود په دې خبرو او معلوماتو ډېر خپه او مغموم سو او خپل تګ ته ئې دوام ورکړ. د بازار په وروستیو برخو کي یو چوک وو. دلته یوه لاره شاهي ارګ ته او بله هم عسکري چونۍ ته تلله. دربیمه د ملکي کورونو خوا ته او څلورمه هم هغه لاره وه چي دی له هغې را روان وو. دی د عسکري چونۍ پر لاره روان سو. تر لږ تګ وروسته د مهماتو ډیپو وو، چي هلته پیره داران مؤظف ول. هغوی توپکونه په لاسو کي نیولي او کرار کرار ګامونه ئې اخیستل. تر دې وروسته د پوځي افسرانو کورونه معلوم سول چي ډېر غټ او جګ ول. دی مخته روان وو چي د یو لوی کور دروازې ته ودرېدی. دروازه ئې کرار وټکوله او لږ شیبه وروسته یو هلک راووت. سلام ئې وکړ او ویې وپوښتل: آیا تاسي ارشد آغا یاست؟

ارشد: هو، ستا مشر چیري دئ؟

دا هلک مزدور وو، او داسي ئې ورته وویل: هغه د څو ساعتو راهیسي ستاسي انتظار کوي.

ارشد: ښه، ورسه او هغه زما له راتګه خبر کړه.

هلک: د خبرَوَلو ضرورت نسته، بلکي ما ته ئې امر وکړ چي تاسي هغه ته بوزم.

ارشد: ښه، نو درځه.

هلک د لاري ښوولو په خاطر دمخه سو او ارشد تر شا پسي روان سو. کله چي تر دروازې تېر سو او دننه کور ته ورسېد نو ویې لیده چي کور ډېر غټ او خورا مجلل دئ. په مجردي چي کورته ننووت نو د ونو باغچه شروع سوه چي د میوو څخه ډکي وې. وروسته قطار قطار ګلان شنه ول چي رنګارنګ او خورا معطر ول. تر هغه وروسته یوه نسبتاً لوړه برنډه وه چي ارتوالی ئې څه نا څه پنځلس فټه وو. تر دې پنځه متره ها خوا ته یو قطار خوني شروع کېدلې. شېرخان په برنډه کي تختونه ایښي ول او له پاسه ئې غالۍ هواري کړي وې او همدلته ناست وو. ارشد چي نږدې ورغی نو سلام ئې ورته وکړ. هغه هم ولاړ سو او ارشد ئې په غېږ کي ټینګ ونیوی او داسي ئې مخاطب کړ: ته یوازي راغلې؟ اشرف دي له ځان سره نه راوست؟

ارشد: همدا مهال اشرف نه سوای راتللای، ښایي سبا راسي.

شېرخان کښېناست او ارشد ته ئې هم د ناستي اشاره وکړه. دواړه یوې خوا ته کښېناستل. شېرخان ورڅخه وپوښتل چي آیا تا بچهٔ سقاو و نه نیوی؟

ارشد: زه هغه ته نږدې ور رسېدلی وم او نږدې وو چي ویې نیسم، خو دفعتاً یو فرمان را ته ورسېد چي د هغه له مخي مي باید د بچهٔ سقاو تعقیب ختم کړی وای.

شېرخان د ده خبري قطع کړې او ویې ویل: ضرور به پر هغه فرمان باندي د شوربازار د حضرت لاسلیک وو؟!

ارشد: هو، بالکل همداسي وو.

شېرخان: ارشده ! نن نن افغانستان ته بهرني خلک راغلي دي. هغوی سپین پوستي دي. خو زه ګومان کوم چي هغوی د بلوا او

ښورښ پیدا کول غواړي. د هغوی اکثریت د شوربازار د حضرت سره څو څو واره کتلي هم دي.

ارشد: خدای دي پر افغانستان باندي رحم وکړي. که نن اعلیحضرت همدلته وای نو د کومي فتني او توطیې خطر به نه وای.

شېرخان: هو بېشکه. وګورو چي د دې هیواد په قسمت کي لا څه لیکلي دي.

ارشد غوښته چي یو څه ووایي چي د ماښام اذان پیل سو. دواړه د لمانځه ادا کولو له پاره دننه خوني ته ولاړل. په دې خونه کي برقي روښنایي وه چي هر شی ئې له ورایه ځلاوه. هلته په نغري کي اور بل وو چي خونه ئې ډېره توده ساتلې وه. لږ ګړی وروسته مهربانو راغله. ارشد د هغې په لیدلو سره ورته ولاړ سو او سلام ئې واچاوه. هغې هم په ډېر ادب سره سلام بیا کړ او د روغبړ پر مهال ئې په ښه دعاوو سره ونازاوه. وروسته دواړه کښېناستل. مهربانو ورته وویل: زویه! زه د ډوډۍ په تیارولو اخته وم، نو ځکه ژر رانغلم. راځئ ډوډۍ تیاره ده او هغه وخورئ.

شېرخان وویل: ډوډۍ تیاره ده، ژر ئې راوغواړه، کولمې مو له لوږي قل هوالله وایي!

مهربانو هم په خندا سره وویل: ستاسي څخه چا پوښتنه کړې ده؟ تاسي خو حتماً یو شی غواړئ.

شېرخان: ما خو د ارشد له خوا ځواب درته وواېه.

مهربانو: ارشد په خپله هم د خدای په فضل سره په خوله کي ژبه لري!

شېرخان: هههه‌هه، زه بیا په دې نه وم خبر!

مهربانو وخندل. ارشد موسکا وکړه او سر ئې کښېته وځړاوه. مهربانو پاځېده او ولاړه. لږ ګړی وروسته عبدالرحمن او حبیبه هم راغلل. ارشد دواړو ته سلام واچاوه او هغوی هم تر وعلیک وروسته دعاوي ورته وکړې. هغه شېرخان ته نږدې کښېناست. هغوی چي کښېناستل څو شیبې وروسته د ښکلا او ښایست دوه بې مثاله تصویرونه یعني حسن جهانه او ستاره خوني ته راننوتلې. هغوی دواړې جګې، بې حده حَسیني او جذابي وې. د هغوی د څېرو ښکلا د برق روڼا شرمولې وه. ارشد د محبت او حیرت له مخي په وقفه اي او لنډ لنډ نظر سره حسن جهاني ته کتل.

حسن جهاني هم خپلي زړه بایلونکي سترګي ارشد ته واړولې، په ځغلنده توګه ئې ورته وکتل او له ډېري حیا څخه وشرمېدله. هغوی دواړو ښه قامت درلود او ډېري ښایسته وې. دواړو په ناز او نزاکت سره ګامونه اخیستل او پر دسترخوان باندي ارشد ته مخامخ کښېناستلې. د هغوی په کښېناستلو سره خادمانو هم خواړه راوړل او پر دسترخوان ئې کښېښودل. مهربانو د هغوی سره یو ځای راغله او بیا ئې خواړه پر دسترخوان باندي واوډل. وروسته ټولو د ډوډۍ خوړل پیل کړل. مهربانو هم یوې خوا ته کښېناستله او د ډوډۍ په خوړلو ئې پیل وکړ.

حسن جهانه ډېره شرمېدله او په شرمناک ډول ئې ډوډۍ خوړله. خو ارشد ډوډۍ هم خوړله او هغې ګلالۍ او سپوږمۍ غوندي ښایسته نجلۍ ته ئې هم یو وار وار کتل. کله کله به حسن جهاني هم غلی غلی او د سترګو تر کنجو ورته وکتل. کله چي به د دې سترګي د ارشد پر سترګو برابري سوې نو د ارشد زړه به په ټوپو سو.

لږ وخت وروسته ټوله د ډوډۍ له خوړلو څخه فارغ سول. خواړه او لوښي ګرده ټول سول. مزدورانو د هغوی ټولو لاسونه پرېولل. حسن جهانه او ستاره پاځېدې او ولاړلې. په

دې سره د ارشد سترګي هم تياره غوندي سوې. هغه يو ګړی لا ناست وو، خو کله چي ناوخته سو نو اجازه ئې واخيسته او له کوره راووت.

دا وخت په ټوله قشله کي د برق رڼا خپره وه. سپين سپين ګروپونه د لمر غوندي ځلېدل چي د سپوږمۍ رڼا ئې پيکه کړې او شا ته پوري وهلې وه. ارشد په دې عسکري قشله کي روان وو او پر هغه لاره بيرته ولاړ چي پرې راغلی وو، خو اوس دلته يو ډېر غټ روښندان (روښنايي انداز) لګېدی. ارشد دلته لږ ودرېدی او شاهي مانۍ ته ئې وکتل.

د مانۍ تر خوا ډېره تېزه رڼا وه چي له امله ئې شاوخوا آسمان هم ټوله صاف معلومېدی. دی د بازار خوا ته وګرځېدی او بازار هم له همدې چوک څخه پيلېدی. ټوله بازار روښانه او تک سپين وو. لا بيا هم تر دې مهاله په بازار کي د خلکو ښه ګڼه ګوڼه وه. په ډېرو دکانو کي مشتريان او رانيوونکي معلومېدل چي سوداوي ئې کولې.

ارشد همدې دکانو ته کتل څو چي شاهي مسجد ته ورسېدی. ده يو څه ناوخته کړی وو او جماعت ولاړ وو. ژر ژر ئې اودس تازه کړ او په جماعت ورسره ودرېد.

د لمانځه تر ادا کولو وروسته ئې دوري هوري کتل. د مسجد له يوه کونجه تر بله هره خوا روښانه وه چي له امله ئې د مسجد ګوټ ګوټ زړه ته خوښي او تازګي وربخښله. وروسته ئې په اول صف کي مسعود وليدی چي ناست وو. له ځايه ولاړ سو او برابر هغه ته ورغی. مسعود هم د ده په ليدو سره ولاړ سو او دواړه په کرار کرار تک سره له مسجده راووتل.

مسعود ورته وويل: ارشده! زه تا د ياغيانو غونډي ته بيايم، خو هلته به د هغوی د خبرو په اورېدو سره نه احساساتي کېږې او نه به هم څه وايې.

ارشد: هوکې سمه ده، بالکل به پټه خوله يم. که له يوې خوا ساده عسکر يم نو له بلي خوا مخبر يا جاسوس هم يم. ما ته د جاسوسۍ مسؤليتونه او فرايض ښه رامعلوم دي.

مسعود: ما ستا له پاره يوه اوږده مصنوعي ږيره او غټې بريتونه هم راوړي دي. د شوربازار حضرت تا ښه پېژني، خو که ته ږيره او بريتونه کښېږدې نو هيڅوک به دي هم و نه پېژني.

ارشد وخندل او ويې ويل: راکړه، دا ږيره او بريتونه راکړه. زه د څېرې بدلولو سره ښه روږد يم.

مسعود د دواړو شيانو د ورکولو پر مهال وويل: واخله او ژر ئې کښېږده.

ارشد هم بېله ځنډه ږيره او بريتونه پر مخ کښېښوول چي نور نو يو معمر سړی ښکاره کېدی.

مسعود چي وليدی نو ورته ويې ويل: په خدای چي اوس دې هيڅوک هم نه سي پېژندلای.

دواړه بيرته بازار ته راغلل. د بازار په ختمېدو سره د ملکي خلکو د کورونو پر خوا روان سول. يو څه مزل چي ئې وکړ يو داسي کور ته ورسېدل چي مخته ئې يوه موضع وه. د دروازې سره يو زوړ افغان پيره دار ناست وو چي اوږدمۍ ئې ايستلې او پر خان باندي ئې يوه توره شړۍ اچولې وه. هغه د دوی د ګامونو د ږغ په اورېدو سره متوجه او تيار سو. په تريو تندي ئې وپوښتل چي تاسي څوک ياست او چيري ځئ؟

مسعود ورته وويل چي د حضرت صاحب خدمت ته حاضرېږو.

سپين ږيري محافظ: ورځئ دننه، او پر

لاري به یو هلک په مخه درسي او تاسي به د حضرت صاحب حضور ته بوزي.

مسعود او ارشد چي دوه درې گامه مخته واخيستل نو سپين ږيرى محافظ وارخطا سو، شړى ئې ژر پر ځان راسمه کړه او نږدې مسعود ته ورغى او داسي ئې ورته وويل: وبخښئ، زه يو څه له خوبه وم، تاسي د شپې نوم (داجازې لفظ) را ته و نه وايه.

مسعود ځواب ورکړ چي: «بچهٔ سقاو»!

سپين ږيرى محافظ هم فوراً بيرته پر شا روان سو او ويې ويل چي صحيح دئ، ورځئ.

دوى دواړه د دروازې څخه تېر سول او د کور انګړ ته ننوتل. په مخکي څلور وسله وال کسان ولاړ ول چي تاوده کوټونه ئې اغوستي ول. هغوى چي دوى ته وکتل پوښتنه ئې وکړه چي څوک ياست؟

مسعود فوراً ځواب ورکړ چي «ازلي وفادار»!

يوه پيره دار ورته وويل چي مخته راسئ.

دواړه پر مخ ورغلل او پيره دار ورته وويل چي د نن ورځى له پاره د ننوتلو الفاظ کوم دي؟

مسعود ورته وويل چي: «بچهٔ سقاو»!

پيره دار: صحيح دئ، خو تاسي دوه کسان ياست او موږ په يو وخت کي صرف يو کس ته اجازه ورکولای سو.

مسعود: زما دغه ملګرى همدا نن د جلال آباد څخه شينوارو رالېږلى دئ.

پيره دار: دا دوست دئ؟

مسعود: هو، دوست دئ او د هداياتو د اخيستلو له پاره راغلى دئ.

پيره دار: آيا شينواري هم د حضرت صاحب د بيعت له پاره چمتو دي؟

مسعود: که تيار نه واى نو خپل دغه استاځى ئې ولي رالېږلى دئ.

پيره دار: صحيح وايې. ورځئ، تاسي دواړه د ننه ورتللای سی.

دوى دواړه تر دغه صحن ورتېر سول او څو گامه وروسته يوه بله دروازه راورسېدله. دلته دوه درې هلکان ولاړ ول او دوى ته ئې سلام واچاوه. مسعود ورته وويل چي موږ د حضرت صاحب حضور ته بوزئ.

يو هلک بېله ځنډه د دوى ملګرى سو، تر دروازه ئې تېر کړل او بيا يوې لويي احاطې ته ننوتل. په دې احاطه کي ډېره رڼا وه. هلک د دواړو په ملګرتيا راسته خوا ته وګرځېد. څو گامه ئې واخيستل چي يوې لويي خوني ته ورننوتل. دلته يو غټ گروپ لګېدى چي دېوالونه او ټوله شاوخوا ئې روښانه کړې وه. په نغري کي اور بل وو. پنځه ځوانان پر څوکيو باندي ناست ول. د هغوى مخي ته يو لوى مېز پروت وو چي توپکونه او توفنګچې پر پرتې وې. د دوى په ليدو سره يوه ځوان د توپک شپېلۍ ور واړوله او داسي ئې ورته وويل: ښه راغلاست.

مسعود او ملګري ئې يعني ارشد فوراً پر دوو پښو تيار ودرېدل. مسعود داسي ورته وويل: «د افغانستان بغاوت».

هغه ورڅخه وپوښتل چي: «د مرحوم امت ملاتړى څوک دئ؟»

مسعود: حضرت صاحب!

هماغه شخص: دوستانو، همداسي دوستان اوسئ.

مسعود: د افغانستان انقلاب دي ژوندى وي.

په دې سره مسعود او ارشد دواړه کرار کرار روان سول او يوه سالون ته ورسېدل. دلته هم روښنايي سپينه ورځ جوړه کړې وه. ارشد کرار و مسعود ته وويل: دا خو ډېر تريخ او ستونځمن امتحان دئ!

مسعود: بس امتحانونه ختم سول. تر دغه سالون وروسته ها بلي خوا ته ښوربښي حضرت او د هغه ياغيان غونډه لري. تر هغه وروسته به زه په تا باندي د دنيا حوري ووينم.

ارشد په حيرانۍ سره ورته وکتل او پوښتنه ئې وکړه چي د دنيا حوري؟ له دې خبري دې مطلب څه دئ؟

مسعود: د افغانستان د حسينو ښځو منظره به درباندي ووينم، د هغوی د ښايسته مخونو او صورتونو په ليدو به بېحاله سې.

ارشد: ښځي بيا دلته د څه له پاره راځي؟

مسعود: د پير پرستۍ له پاره.

ارشد غوښته چي څه ووايي خو مسعود د چپ کېدو اشاره ورته وکړه او کرار ئې ورته وويل: د ياغيانو خونه راورسېدله.

دواړو څو نور ګامونه واخيستل او يوې لويي او پراخي خوني ته ورننوتل. په دې کوټه کي څو دانې غټې قنديلونه لګېدل چي روڼا ئې توره شپه په سپينه ورځ سره اړولې وه. ټوله خونه په قيمتي غاليو سره فرش وه. دلته پر ناليو باندي ډېر خلک ناست ول چي ټولو سرونه کښته نيولي ول. مخامخ يو بوډا (ضعيف العمر) شخص ورته ناست وو چي لنډ لستوڼې قبا يا چپنه ئې اغوستې وه. پر زرينه خولۍ ئې زرينه لنګوټه تړلې وه. ږيره ئې ډېره اوږده او سپينه وه. څېره ئې غنم رنګه وه او غټې سترګي ئې لرلې. له څېرې ئې د عيارۍ او مکارۍ نخښې له ورايه ښکارېدې. همدا شخص د شوربازار حضرت وو.

حضرت ته نږدې پر راسته او چپه خوا علماء او صوفيان ناست ول او ټولو سرونه ځوړند کړي ول.

کوم وخت چي مسعود او ارشد خوني ته ور داخل سول، حضرت خپل سر راپورته کړ او دواړو ته ئې وکتل. مسعود او ارشد په بېړه ځانونه هغه ته نږدې ورسول، خپل زنګنونه ئې کت (قات) کړل او هغه ته ئې سلام او احترام وکړ او بې له ځنډه ئې د هغه زرينه چپنه ښکل (مچ) کړه.

د شوربازار حضرت هم موسکا وکړه او ورته وې ويل چي ښه راغلاست! د افغانستان خير غوښتونکو ښه راغلاست!

مسعود: مرحبا! د مړه امت را ويښوونکې، مرحبا!

وروسته دواړو څو ګامه پر شا راواخيستل او راسته خوا ته کښېناستل او سرونه ئې کښته وځړول. لږ شېبه وروسته حضرت وويل چي زما په خيال ټول کسان راورسېدل، غونډه شروع کړئ.

يو ضعيف پير وويل چي هو، نور نو کارروايي بايد پيل سي. دغه بوډا (آغا شير) نومېدی چي د حضرت صاحب ورور وو او په غلجيو کي ئې ډېر نفوذ او قوت درلود.

حضرت ځان تيار کړ او سم کښېناست. وروسته ئې داسي په خبرو پيل وکړ: «د افغانستان خير غوښتونکو، له بده مرغه نن چي د افغانستان کوم پاچا په نصيب سوی دئ، نه پخپله پر شرع روان دئ او نه هم د شرعي احکام په باک راوړي. دی ږيره نه پرېږدي حال دا چي ما څو څو واره د ږيري پرېښوولو په باره کي ورته ويلي دي. هغه د علماوو او پيرانو سره دښمني کوي. د عالمانو او صوفيانو معاشونه ئې څکه بند کړي دي تر څو يوازي د فکر د معاش په غم کي سي او ديني علم پرېږدي او پر ځای ئې انګريزي، فرانسوي، جرمني، ايټالوي او روسي ژبې زده کړي. په هيواد کي نه ديني علم او نه هم مذهب پاته سي بلکي ټوله بې مذهبه سي. شراب وڅښي، زناوي وکړي، خدای او د

خدای رسول هېر کړي، کافران او ملحدان سي.

هغه جبري عسکري قانون نافذ کړی دئ چي له مخي ئې که څوک ځان په عسکري کي شامل نه کړي نو څلور سوه روپۍ تاوان به تادیه کوي. که د تاوان ورکولو توان و نه لري نو محبس ته باید ولاړ سي. وګورئ دا څومره لوی ظلم دئ. که بالفرض په یوه کورنۍ کي شپږ ځوانان او یو د هغوی ضعیفه پلار وي او هغه هم ناروغ وي او زامن ئې د هغه په پالنه او ساتنه بوخت وي، نو حکومت هغوی ته وایي چي ستاسي څخه یو نفر باید په پوځ کي ځان شامل کړي، که نه څلور سوه روپۍ تحویل کړئ. هغوی خو پیسې نه لري، نو څنګه دا خپل ناروغ او سپین ږیری پلار پر میدان پرېږدي او په پوځ کي شامل سي؟ څوک به داسي وکړي؟ که داسي و نه کړي نو سزا به ورکول سي، آیا دا ظلم نه دئ؟»

ټولو په لوړو ږغونو سره وویل چي: «هو، سراسر ظلم دئ».

حضرت: کونډي او یتیمان کور پر کور فقر کوي. حکومت د هغوی له پاره هیڅ انتظام او سربښته نه ده کړې، بلکي پیسې د پوځي مهماتو او مرمیو د جوړولو، توپونو، اوسپني او پولادو، د عسکرو د جلب او احضار، د تلګراف او برقي تارونو، د برېښنا د فابریکو د جوړولو او د اروپا په سیاحت کي د مصرفولو له پاره دي خو د کونډو او یتیمانو له پاره نه دي. نو آیا دا ظلم نه دئ؟

یو ځل بیا ټولو په لوړ آواز وویل چي هو، بېشکه ظلم دئ.

د شوربازار حضرت: له ډېري مودې راهیسي ما پرله پسې ویلي دي چي امان الله خان مرتد او ملحد سوی دئ. هغه وخت خلکو زما خبره نه منله. نن خپل پاچا ته وګورئ چي خپله مېرمن ثریا ئې لڅ مخي کړې ده. اروپا ته په تګ سره هغې خپله چادري (برقع) غورځولې ده. هغه هلته په بازارو، تیاترو او تفریح ځایو کي د اروپایي ښځو غوندي بې پردې او بې ستره ګرځي. زه به تاسي ته د خپلي ملکې عکسونه درښکاره کړم. همدا نن زموږ یو ورور له سرحده راغلی دئ او په ډېره خواري او تلاښ سره ئې دا عکسونه تر لاسه کړي دي.

د غونډي یو شخص اشاره وکړه چي بلې هو، لطفاً دا عکسونه راښکاره کړئ. یو ښایسته سړی ودرېدی چي څېره ئې سپینه او ښه صافه وه، سترګي ئې شنې وې. ږیره یې شناوۍ (توره او سپینه) وه. هغه په ډېر ادب سره څو اړونده عکسونه حضرت صاحب ته ورکړل. ارشد چي دغه سړي ته وکتل نو کرار ئې وویل چي: «اوهو، دا بیا څوک دئ، آیا...».

مسعود کرار په څنګلي وواهه او ورته ویې ویل: «هر څوک چي دئ، چپ سه».

حضرت دا عکسونه د غونډي برخه والو ته ور واړول. دا د ملکې ثریا عکسونه وو. هغه په اروپایي لباس کي معلومېده. نیم بازوګان ئې لوڅ ول، مخ ئې هم لوڅ وو، څګر ئې هم یو څه ښکاره کېدی.

د شوربازار حضرت وویل: دا دي ستاسي د ملکې عکسونه! امان الله خان نه یوازي دا چي د افغان ملت ناموس ئې بې پته کړ بلکي اسلامي شریعت ئې هم په اروپا کي ذره ذره کړ. آیا کوم غیرتي او ننګیالی افغان داسي امیر خپل پاچا بللای سي چي ماندینې ئې خپل ننګ او ناموس تر پښو لاندي کړی او د اروپا په هوټلو، قهوه خانو، تیاترو، تفریح ځایو او بازارو کي بې نقابه دوري هوري ګرځي؟

ټولو وویل چي یا، هیڅکله نه.

حضرت: د امان الله خان د دې حالت په لیدو سره زما د اوښکو پر ځای د زړه وینې بهېږي. زه زور نه لرم که نه، امان الله خان به مې په زوره سم کړی وای.

یو ځل بیا ړغونه راپورته سول چې: هغه به سموو.

حضرت: شاباش! د افغان ملت پت ساتونکو، آفرین! ما ته معلومه ده چې مهمند، اپرېدي، خوګیاڼي، احُکزي او هم د کوهدامن د وادۍ ټوله قومونه د امان الله خان مخالفه سوي دي. غلجي او شینواري هم ورځ په ورځ د هغه مخالف کېږي. زما داسې اراده ده چې دغسې خپلسره پاچا باید له تخته بې واکه سي او پر ځای ئې کوم هوښیار او د اسلامي شریعت پابند پاچا واکمن کړو.

یو ځل بیا آوازونه راپورته سول چې: «حتماً باید همداسې وسي».

حضرت: ما داسې پتیېلې وه چې سردار عنایت الله خان یعنې د امان الله خان ورور، د پاچا په حیث وټاکم. خو زه پوهېږم چې عنایت الله بې زړه دئ، د ښځو سره ئې ډېره جوړه ده. هغه وینه چې د امان الله خان په رګو کي درومي، د ده په رګو کي هم روانه ده. ښایي دی هم د امان الله خان غوندي بې مذهبه (سیکولر) سي. نو ځکه دی نه سي پاچا کېدای.

سردار علي احمد خان یعنې د امان الله خان اخښی بیا شرابي او کبابي دئ. هغه د رسول د ناموس پابنده نه دئ. نو ځکه هغه هم د پاچهۍ وړ نه دئ. بس یوازې نادر خان ته نظر اوړي. خو هغه بیا په اروپا کي دئ. د هغه رارسېدل یو څه وخت غواړي. موږ ډېره موده انتظار نه سو کولای. پس زما په نظر حبیب الله خان چې په بچهٔ سقاو سره مشهور دئ، خورا متدین، نېک سیرت او د هیواد او اولس خیر غوښتونکی دئ. اوس اوس خو هماغه باید پاچا کړه سي.

ټولو په یوه سلا وویل: «هر څه چې تاسي جناب وفرمایاست هماغه صحیح دي».

د شوربازار حضرت: چې داسې ده نو ټوله قسم وکړئ چې د امان الله خان پر ضد به د بچهٔ سقاو هر ډول مرسته کوی.

بې له مسعود او ارشد څخه ټولو په لوړ ږغ قسم وکړ.

حضرت: بس پر همدې ځای د نن اجراآت پای ته رسوو. اوس نو ټوله په پټه خوله سره تیت او پرک سئ. د ملکې ثریا عکسونه درسره واخلئ او د امان الله خان پر ضد پروپاګنډ پیل کړئ.

د غونډې ټولو برخه والو ته دغه عکسونه ووېشل سول. د عکسونو په تقسیمولو سره دا غونډه هم پای ته ورسېده. د ګډون والو وتل شروع سوه. د ټولو په پای کي حضرت وپاڅېد او د خوني د شا له دروازې څخه ووت.

مسعود او ارشد هم راولاړ سول او مخ د سالون پر خوا روان سول. د سالون په پای کي یوه کوچنۍ دروازه وه چې تر ننوتلو وروسته یوې ښایسته او پراخې باغچې ته ورسېدل. د باغچې څخه چې تېر سول نو یوې برنډې ته ورسېدل چې پر آخوا ئې یو غټ سالون وو چې خورا زیاته روڼا پکښې خپره وه. مسعود ارشد ته په غوږ کي کرار وویل چې د یاغیانو غونډه خو دې ولیده، اوس د شاپېریانو ننداره هم وکړه. خو ډېر په پټه به ئې سېل کوې، داسې نه چې څوک دې ووینې. که نه زما او ستا جسدونه به پر مځکه پراته وي.

ارشد: زه ډېر احتیاط کوم. ډاډه اوسه.

مسعود: نو چې داسې ده اوس ورسه، هغې خوني ته وګوره او بیرته راسه.

ارشد هم د یو ستون شا ته پټ ودرېد او

خوني ته ئې دننه وکتل. هلته ئې په لسګونو ښځې ولیدې چې ولاړې وې. هغوی ټولې خواناني او خورا ښایسته وې. ګران بیه لباسونه ئې اغوستي ول. د هغوی پر سپینو مخونو باندې رڼا منعکسه کېدله. ارشد تر دې ورځې د داسې ښکلو افغاني ښځو یو ځای والی نه وو لیدلی. هغه دغه شاپېریانو غوندې ښایسته نجونې په لوڅو مخونو کې د شوربازار د حضرت په حضور کې ولیدې او تعجب ئې وکړ.

حضرت پر یو تخت باندې ناست وو. هره شاپېرۍ پېغله به ده ته نږدې ورتله او پر ملا به ورته خم او کټ سوه او د ده احترام به ئې وکړ. ده به د هغوی پر نفیس او نازک سر باندې د شفقت لاس تېراوه او پر تندي به ئې مچوله.

د دغو ښکلو او سپین مخو پېغلو په ډله کې داسې نازکې نجونې هم وې چې په لیدو ئې انسان بې حاله کېدی او د ژوند تر پایه به ئې د هغوی لطیف صورتونه له یاده نه وای ایستلي. که ارشد د حسن جهاني د محبت په زولنو نه وای تړلی، نو ضرور به ئې په دغو شاپېریانو غوندې ښایسته پېغلو کې پر یوې زړه بایلودی.

ارشد په داسې حال کې چې په ډېر حیرت سره ئې دغه زړه راکښونکې ننداره ته کتل، مسعود کرار تر لاس ونیوی او راکش ئې کړ. دواړو درانه درانه ګامونه اخیستل او له دې ځایه روان سول. په باغچه کې راتېر سول او برابر سالون ته راغلل. دلته په رارسېدو سره ارشد غوښته چې څه ووایي خو مسعود په اشاره سره منع کړ. له دې ځایه دواړه هغې خوني ته ولاړل چې پنځه کسان پر څوکیو باندې پکښې ناست ول. لنډه دا چې بیرته له ټولو هغو لارو څخه راتېر سول چې پر راغلي ول. وروسته د باندې راووتل. کله چې بازار ته

ورسېدل، ویې لیده چې هره خوا مطلقاً سکوت او خاموشي ده. دکانونه ټوله بند ول، کوم محدود دکانونه چې خلاص ول هغه هم تړل کېدل.

نور نو ډېر ناوخته سوی وو او د شپې آرام خپل څادر غوړولی وو. شپه خو تیاره وه مګر د برقي څراغونو د رڼا له امله په بازار کې ښه رڼا خپره وه. ارشد وویل: دا بدبخته ملایان او اسلام دښمنه پیران خو له تخته د اعلیحضرت د شړلو په فکر کې دي.

مسعود: کوم څه چې تا ولیدل، د هیچا په مخکې ئې تر خولې مه راباسه، که نه پښېمانه به سې.

ارشد: زړه مې غواړي چې د شوربازار د دغه حضرت سر خو له تنه پرې کړم. غواړي چې د ملکې ثریا د بې حجابۍ په غرض ټول هیواد بغاوت او ښورښ ته ولمسوي خو پخپله د ښکلو او ځوانو ښځو تندیان مچوي. دا بدبخته، بدکاره او احمق انسان پر کابل باندې د یو غله د واکمنولو په فکر کې دئ.

مسعود: ما دا غلطي وکړه چې ته مې دغسې پټې غونډې ته بوتلې. که احیاناً ته دغه راز وپاشې نو ځان به هم غرق کړې او ما به هم درسره قتل کړې.

ارشد، یا، بس خپل احساسات مې کنټرول کړل او یو لفظ به هم له خولې و نه باسم، ډاډه اوسه.

مسعود: اوس اوس خو هوښیاري دا ده چې بالکل پټه خوله اوسې.

ارشد: ښه دئ، خاموش به یم.

دوی دواړو همدا خبري سره کولې چې هر یو خپل خپل منزل ته ورسېدل.

نور بیا ...

# اغېزه ناکه مذاکره

لیکوال: کین لاسن، ایم. اې، اې ډي. ایم
ژباړه: **سعید لودین/کاناډا**
(اوومه برخه)

**اړیکو ته متوجه کېدل:**

ماهره مذاکره کوونکی تل د اړیکو ماهر هم وي. که تاسي و مقابل لور ته د خپلو ګټو او افکارو په روښانه کولو کي پاته راغلي یاست نو دا به تقریباً ناممکنه وي چي د مذاکرې پر نتیجه باندي مو ښه اغېزه لرلې وي.

**۱- خپل افکار او نظریې په مناسب ډول بیانول:**

د دې دا معنا نه ده چي مقابل لور و دې ته مجبوره کړئ چي ستاسي غوښتني او اندېښنې واوري. دا مو باید تل په یاد وي چي تاسي و دوه اړخیزه ګټونکي جوړي ته رسېدل غواړی. و دې هدف ته په سراښتوب، سرتمبګی، سرسختی، او تردید نه سی رسېدلای.

**۲- خپل ځان پر مناسب وخت اظهارول:**

ځان اظهارول په دې معنا دئ چي څه وخت خبري وکی او کوم وخت چپ واوسی. ناحقه ګډېدل، د حریف په خوله کي ورلوېدل، بې ځایه اصطلاحات کارول، تردید او بې باوري کېدل تل د اړیکو په خرابېدو کي ثابت سوي موضوعات دي. برعکس د مقابل لور په غور اورېدل، آرام او متوجه اوسېدل تل له ځانه سره ښې پایلې لرلې دي.

**۳ - مقابل لور اورېدل:**

تاسي باید و مقابل لور ته په ډېر غور غوږ سئ چي څه وایي. دا د اړیکو ډېر مهم او سخت مهارت دئ چي تاسي ته به په ډېرو کاروباري معاملو ا و د ژوند په نورو حالاتو کي ښه موقف په لاس درکړي. که څه هم موږ د ا فکر کوو چي هر څه چي اورو هغه مو په غور اورېدلي دي خو هغه داسي نه وي. په غونډه کي و حریف ته غوږ ونیسئ او پوښتني ځني وکړئ. دا کار به و ده (حریف) ته دا وښیي چي تاسي ئې په غور اوری او ښه تاثیر به پر وکي ځکه موږ ټول په یو ډول نه بل ډول د توجه تږي یو.

دافادې کوم ډولونه وکاروو؟

**۱- په واضح او روښانه توګه وګړېږه!**

د دې معنا دا ده چی و مقابل لور ته په داسي یوه انداز ګډ سئ چي سر ئې ژر خلاص سي. فشار پر اچول، د دباندنیو خبرو (داخبار یا راډیو) ردول او یا د خپل مشر د خوشحالولو له انداز څخه به ستاسي حریف ډېر ژر خواتوری سي. د خپل حریف سره په عزت او روښانه توګه خبري وکئ.

**۲- لاسته راوړني او نتیجې تشریح کول:**

و حریف ته مو دا تشریح کړئ چي د هغه

مشورې او ګټې ستاسي پر موقف څه ډول تاثیر کوي. د داسي یو څه په ویلو سره به تاسي د مذاکرې پر جریان نور هم لاس بري سی. "دغه قیمت چي ته ئې وړاندیز کوې، ما به له کاروباره وباسي" د داسي څه ویلو څخه ډډه وکړئ "ته په لوی لاس غواړې چي ما ډېوالي کړې".

لومړی جمله پر تاسي اغېز روښانه کوي او مقابل لور و فکر ته اړ باسي، مقابل لور ته به دا معلومه سي چي تاسي په هیڅ صورت د هغه وړاندي سوي قیمتونه نه سی منلای. دوهمه جمله هیڅ نه روښانه کوي، بلکي د لاسه لا پر مقابل لور تهمت تړي چي په لوی لاس ئې کاروبار خرابوي.

**۳- هغه څه وو ایه چي هدف دي دئ!**

دا یعني په روښانه او واضحه توګه وړغېږه. داسي وګډېږه چي ستاسي نظر و مقابل لور ته روښانه سي. اکثره وخت دا فکر غالب وي چي باید هره کوچنۍ موضوع روښانه سي، هر څه پر کاغذ ولیکل سي او نوټونه واخیستل سي چي مقابل لور غلط په ثابت کړه سي. داسي مه کوئ. فکر په دې کي وکړئ چي څه باید وو ایاست او پر مقابل لور به ئې اغېزه څنګه وي؟

**خپل پرمختګ تر نظر تېرول:**

د دې فصل په لوستلو به تاسي په یوه ډېر ښه موقف کي یاست چي د خپل حریف سره مذاکره پیل کړئ. دا هغه وخت دئ چي خپلو خامیو ته متوجه سئ. په دې کي شک نسته چي مقابل لور کوښښ کوي چي ستاسي خامیاني ځان ته معلومي کړي. سړی چي هر څونده ښه مذاکره کوونکی سي بیا هم څه خامی لري.

**۱ - ستا د مذاکرې کوم اړخونه ستا په اند کمزوره دي؟**

دا هغه نکتې دي چي خاصه توجه غواړي څکه همدا نکتې دي چي څوک پر خوله غوزاروي.

**۲- د مقابل لور په اړه څونه معلومات لرې؟**

ځان ته دا معلومه کړه چي حریف مو د خپلي کمپنۍ سره له څه وخت راهیسي دئ؟ څونه تجربه لري؟ څونه کامیابه دئ او ستاسي د کاروبار په بخش کي څونه معلومات لري؟

**۳- د بند راتللو په صورت کي د تېښتي لار مو کومه یوه ده؟**

واضح موقف درلودل تل ښه وي "زه د دې موضوع په اړه څه نه سوای ویلای، وروسته به ئې جواب درته راوړم". داسي روښانه څه ویل تر هغه ښه وي چي ګنګوړه او د درواغو څه ورته وو ایې څکه په ګنګوړه توب او درواغو به مو ځان ته په خپله لومه جوړه کړې وي.

**د کارکردګۍ چک لیست - ستاسي پلان:**

دا لیست د خپلي مذاکرې د پلان په جوړولو کي استعمال کړئ. دا یقیني کړئ چي ټول مهم موضوعات مو پکښې راوستلي وي او د تر لاسه کولو په صورت کي سوال صحیح ورته ولیکئ:

١. هغه کومي ګټې اوموقفونه دي چي تاسي دواړه و مذاکرې ته هڅوي؟ ☐
٢. ستاسي د ګټو ښه نتیجه تر لاسه کول کومه یوه ده؟ ☐
٣. د حریف سره مو څنګه اړیکي غواړئ؟ ☐
۴. د مذاکرې طرز مو کوم یو انتخابوئ؟ ☐
۵. هغه کوم تاکتیکونه دي چي ته به ئې د مقابل لور د مذاکرې د طرز په مقابل کي کاروې؟ ☐

٦. د خپلو ګومانونو د رفع کولو له پاره به کوم کوم سوالونه کوې؟ ☐
٧. ستا او د مقابل لور ګټې به چيري سره ټکر پرې؟ ☐
٨. هغه کوم شيان دي چې ته و حريف ته يو څه پکښې ورتېرېدلای سې؟ ☐
٩. سوالونه به په څه ډول وکې چې مذاکره رهبري کړای سې؟ ☐
١٠. ايا د مقابل لور سره د همږغۍ له پاره يو روښانه اجنډا لرې؟ ☐
١١. ايا د تر شا کېدلو يو قوي پلان لرې؟ ☐
١٢. ايا تا ته خپل اوليتونه درمعلوم دي؟ ☐
١٣. ايا تا خپلي خبري ليکلي او اماده کړي دي چې څه به وايې؟ ☐
١۴. ايا ته پوهېږې چې دا خبري به څنګه کوې؟ ☐

## په غونډه کي

دغونډي پر مخ بېولو هنرونه موڅونده ښه دي؟

د خپل کورني کار تر کولو او امادګۍ نيولو وروسته، د مذاکرې د پيلولو طريقه هم مهم کار دئ. دا دي اخيري پرېکړه ده. ته پر هغه لار روانېږې چې و ځان ته دي انتخاب کړېده، د خپل حريف سره ستړې مه سې کوې او د غونډي و پيلولو ته اماده کېږې.

ډېر مهم کار چې د اوله سره ئې لا څوک په فکر کي ونيسي دا دئ: په سمه توګه اورېدل دي، چې اکثره ورته "په غور اورېدنه" ويل کېږي. دا مهم کار به و تاسي ته دا موقع په لاس درکړي چې پر مذاکره باندي خپله اغېزه وښندې. خصوصاً چې بيا ستاسي حريف ئې نه کاروي. په دې کار سره به تاسي د هغو مهمو نکتو په پېژندلو کي چې و جوړي ته د رسېدلو له پاره ډېري مهمي دي تر خپل سيال ډېر مخ ته ياست.

د غوره اورېدني په پروسه کي د بايد او نه بايد کولو ليست.

١. بايد تل متوجه اوسې او هر څه چې درته ويل کېږي بيا سم ورته غوږ يې: کله چې مقابل لور خبري پيل کړي چپ اوسه. مخامخ ورته ګوره او متوجه اوسه. تر څو چې مقابل لور د موضوع په اړه ګډ وي ته بايد بې له توجه او اورېدلو بل څه و نه کړې.
٢. د مقابل لور په خبرو کي مه ورلوېږه: ته د خبرو په جريان کي متوجه نه سې اوسېدلای خصوصاً چې بيا د مقابل لور په خوله کي ور لوېږې.
٣. ژر قضاوت او اخيرنۍ فيصله مه کوئ: په غور د بل چا خبري اورېدل دا معنا نه لري چې صرف الفاظ يې واورئ بلکي منصفانه او بې تبعيظه اورېدلو ته هم وايي.
۴. تر اورېدلو وروسته بايد پوښتني وکړئ هغه په دې چې، څه چې مو اورېدلي دي درته روښانه سي. په پوښتنو کولو سره دا وښياست چې تاسي په غور اورېدل کوئ. دې کار ته په خوله کي ور لوېدل نه وايي بلکي مقابل لور و دې ته هڅوی چې خپل بحث نور هم روښانه کړي.
۵. د اورېدلو خبرو لنډيز جوړ کړئ: د دې له پاره چې په هغه بحث چې د موضوع په اړه دئ ښه پوهيدلي يو او د غلطو ګومانونو مخنيوی مو کړی وي بايد د بحث د مهمو نقطو لنډيز جوړ کړو.
٦. د بحث په جريان کي بايد نوټونه واخيستل سي: دا د بحث د تندوالي په صورت کي ډېر ګټور وي، او د مهمو معلوماتو په تر لاسه کولو کي ګټور تمامېږي. نور بيا ...

ډاکټر عبدالرازق پالوال

# مستقیم اخوندزاده

دی په میرویس نیکه لېسه کښې زموږ متعلمینو د دینیات معلم ؤ. هلکانو دی ځکه مستقیم اخوندزاده باله، کله چې به دهٔ ښی یا کیڼې خوا ته مخ اړاوهٔ، ځپل ټول بدن به ئې و هغې خوا ته ورسره وګرځاوهٔ. بل دا چې دهٔ به سر جګ نیولئ او پر لارې به تیک tyak نېغ تلئ.

بله هېښنه پېښنه دا وه لکه د دهٔ لار چې به په هغه کوڅه کښې وه چیرې چې زموږ کور ؤ. په دغه کوڅه کښې به د نورو کوڅو څخه څه څلورو – پنځو متعلمانو هم د جمعې په ورځ یا مردکې کولې یا به په پاتاو کښې لمبېدل. له نېکه مرغه هره پلا چې به دی راغلئ، نورو هلکانو به مردکې کولې، زهٔ به ډوغ وم یا به پوچ سوئ وم. هلته به یوې خوا ته د دېوال و سیورې ته ناست وم. دی به ودرېدئ، هر مردکې کوونکې هلک ته به ئې وکتل. بیا به ئې د دوی و مردکو ته وکتل. تر دغه وروسته به ئې و ما ته وکتل. ما به نو یوه پلا و دغو هلکانو ته لاس ونیوئ، او بیا به مې د دوی و مردکو ته لاس ونیوئ، داسې به مې ورته وښوول چې دا خو دوی دي چې مردکې کوي. زهٔ ښه هلک خوئې نه کوم. و ما ته د دهٔ کتلو یو راز خښم یا ترینګلتیا منعکسوله. تر څه ګړې درېدنې وروسته به راځخه ولاړئ.

کله چې به موږ هلکان په پاتاو کښې لمبېدلو، دی چې به راغلئ او د پاتاو د پله پر سر به راته ودرېدئ، ما چې به هره پلا د دهٔ د لنګوټې شکشی (کوچنوټې جوغه) ولیدله، زهٔ به ژر په اوبو کښې یوپ سوم، او په غوټې سره به ولاړم، د پاتاو په سوبه به ځنې ننوتلم. دهٔ به و هر هغه پېژندلې هلک ته وکتل، خو زهٔ به ئې نه ولیدلای سوای. زهٔ به تر هغو پورې دننه په سوبه کښې ولاړ وم چې دی به راځخه تلئ. بیا به نو یوهٔ یا بل هلک وپوهولم چې دی ولاړئ. زهٔ به نو هم له سوبې څخه ورووتم. دی به په کوڅه کښې څه واټن ولاړئ. خو بیا به ئې هم زړهٔ مدار نه کاوهٔ، او په دې ګومان به ؤ چې که نه ګانه زهٔ ورسره نه یم، دغه هلکان به هم دلته نه وي. ځکه به نو بیرته راوګرځېدئ. و ما ته به هم د سوبې پر سر ولاړو هلکانو، یوهٔ یا بل راته وویل چې دی بیرته راګرځېدلئ دئ، یا به ما بیا د دهٔ د لنګوټې شکشی ولیدئ. زهٔ به هم سمدلاسه یوپ سوم او په غوټې سره به بیا هم په سوبه ځنې ننوتلم. دی به بیا هم څه ګړی د سوبې پر سر باندې ولاړ ؤ. هر هلک ته به ئې وکتل. دا چې زهٔ به ئې نه ولیدم، بیرته به ولاړئ. دهٔ به هره پلا دغه اوز هلکان ولیدل چې په دوی کښې به ښایسته ګل ؤ، نازک جان ؤ، مرجان ؤ، جانان ؤ، او هم یو ؤ بل نور ول.

دهٔ به هره پلا دغه اوز هلکان ولیدل چې مردکې به ئې کولې، یا به لمبېدل، خو و هیڅ یوهٔ ته ئې هیڅ نه ویل. دهٔ یوه ورځ په صنف کښې د ټولو هلکانو په مخ کښې وویل: برایې مې په وادهٔ

کتبي نازک جان وليدئ، او نُقل (نوکل) مي لا هم ورکړل. آيا د دې خپله هلکينه په ياد نه وه چي نه به ئې چيري بازي کولای سوای او نه به هم په پاتاو يا واله کتبي لمبېدلای سوای.

يوه ورځ تر غرمې وروسته، برمل مهال، له بازاره څخه مخ د کور پر خوا په کوڅه کتبي سوکه – سوکه خوښاند ځومبېدمه. نيني کړي، مالگيني بنگي به مي له جېبه څخه راوکتبې او خولې ته به مي واچولې، په کړيچي سره به مي ژوولې. څه گړی وروسته مي داسي احساس وکړ لکه څوک چي به مي پر څنگ راسره تلونئ وي. د سترگو تر کونجانو مي ورته وکتل. رشتيا هم څوک پر څنگ راسره ملگرئ ؤ. خو دا چي نه مي وپېژندلای سوای، نو مي مخ ورواړاوه. که مي کتل چي هغه مستقيم اخوندزاده ؤ.

دې هم سمدلاسه راته وويل: ته نه شرمېږې چي پر لاري ځې خورک کوې؟ ته دونده بې ادبه او بې تربيې يې؟ ته کور او د ناستي ځای نه لرې؟ سړی په ناستي خورک کوي، که ئې په ولاړي او په تگ کتبي کوي؟ ته چي د خورک په ادابو نه پوهېږې، په نورو معاشرتي ادابو به لا کله پوهېږې؟ ته چي مکتب او معلم پر لار کړئ نه يې، اخلاق ئې درښوولي نه دي، نور به ئې څوک درښووي...

دې په کډو کتبي ډېره راته اچولې وه او راته گړبوله ئې، زما غوږونه ئې راکاڼه کړل. ما ويل ای وای چي دغه مځکه چاودلې وای او زه له ده څخه ځني په ننوتلئ وای، يا مي غړي تښتېدلي نه وای چي ايسته مي ځني ځغستلي وای او ځني تښتېدلئ او پټ سوئ وای. چي نور مي د دې پېغورونه هيڅ نه اورېدلای.

دی د دغو پرله پسې نا اړونده پېغورونو څخه داسي بوز راته ولاړ ؤ. دې نه خوله نيوله او نه ئې پېغورونه تمامېدل. دې يوه پلمه راته پيدا کړې وه، ځکه ئې نو غوښتل چي خپل ډک زړې ئې راباندي تش کړئ وي. دی تر هغو پوري راته ويېدئ ځو چي زه و کور ته ځني گرځېدم. ما گومان کاوې چي نور ئې خپل ډک زړې پر راتش کړئ دئ، خو لا نه ؤ او لا ئې خروښ ختلئ نه ؤ.

بله ورځ چي د دينيات ساعت ؤ او مستقيم اخوندزاده و کوټې ته راغلئ. د صنف و مخې ته چي د معلم له مېزه سره ودرېدئ، لومړی ئې له هلکانو څخه پوښتنه وکړه: وواياست چي ستاسي په صنف کتبي لوچک څوک دئ؟ راونې ښياست!

هلکانو مخ ور واړاوې او فاروق ته ئې وکتل چي د ټولو په پای کتبي ناست ؤ. (فاروق هيښبي سترگي خړ پړ داسي خينگ ناست ؤ).

اخوندزاده صاحب ورته وويل: هغه نه يادوم، بل دئ. دا پلا نو هلکانو و محمدرحيم ته وکتل چي هغه هم د ټولو تر شا پر بله چوکۍ باندي ناست ؤ. مادرهيم هم هېښ پېښ داسي خينگ ناست ؤ. دی هم نه پوهېدئ چي دې چيري څه لوچگي کړې ده؟

اخوندزاده صاحب و هلکانو ته وويل: تاسي ولي و محمدرحيم ته گورئ؟ هغه ښه اهل ؤ صالح سړئ دئ چي ښه مبارکه ږيره لري، تاسي لا ولي تر اوسه پوري د خپل صنف لوچک پېژندلئ نه دئ؟

که نه گانه مستقيم اخوندزاده زموږ همزولئ وای. دې به هم په خپله کوڅه کتبي له نورو هلکانو سره بازي کولای نه سوای. دی به هم د نورو غوندي راتلای او زموږ په کوڅه کتبي به ئې ساعت تېرولای. چا به نه زهيرولای. هغه بله زمانه، بل چاپېريال او نور شرايط ول. زما په

ګومان سره عامل ئې دا ؤ چې دوی له نورو هلکانو څخه لباسي توپير لاره او نو هم کورنيان لوی سوي ول، نه په کوڅه کښي له خپلو همزولانو سره. دوی لږؤ ډېر بېله روزنه لرله.

فاروق او محمدرحيم به ښايي تر موږ څلور – پنځه کاله مشران ول. بل دا چې فاروق ړيره خر ببله او محمدرحيم ړيرور ؤ.

هلکانو هم له دوی څخه مخونه واړول. چا کښته و مېز ته او چا و دې ته په هېښتيا سره کتل چې دا بل لوچک نو څوک دئ. دا چې دوی اندېښمن کښېنستل، اخوندزاده صاحب ورته وويل: تاسي د خپل صنف لوچک نه پېژنئ؟ هلکان په چورت کښي هېښ – پېښ او ډوب ناست ول چې مستقيم اخوندزاده ولي او پر څه باندي و چا ته په خښم دئ.

دې و ما ته وکتل او لاس ئې راته ونيوئ او په خښم سره ئې راته وويل: "ولاړ سه چې ټول دي وپېژني!" زه هم ولاړ سوم. دې و هلکانو ته وويل: ستاسي د صنف لوچک دغه دئ. ښه ئې وپېژنئ. تېره ورځ په کوڅه کښي پر لاري تلئ او خوړک ئې کاوه. دی دوغنده بې ادبه دئ چې د خپل چينباک او خوراک ځای نه پېژني. يو ادبي سړی په ناستي خوړک کوي، که په ولاړي؟ دې لا په تګ کښي خوړک کاوه.

تر څو شپېتو کلونو وروسته کله چې زه څه ۱۶ – ۱۷ کاله ترمخه د پښتونخوا په سرخاو کښي اوسېدلم، چې د پښين په ختيځ کښي د شبلي او ماندې يوه وچه دره ده. ونغوړېدم چې مستقيم اخوندزاده ناروغ سوئ دئ او د پښين په يوه هسپتال يا روغتون کښي بستري دئ. زه ئې د ليدني او پوښتني له پاره يوه جمعې ورځ له سرخاو څخه په کوه ټه کښي و پوښتني ته ورغلم. په روغتون کښي پر بستر پروت ؤ. کله چې ئې زه وليدم په نامه ئې راباندي ږغ کړه چې عبدالرازقه ستړی مه سې، ښه راغلې! زه هېښ پاته سوم چې څنګه ئې وپېژندلم. ښاغلي محمدولي زلمي هم په دغو ورځو کښي زه پېژندلئ نه وم، څو چې ښاغلي محمدنادر ايوبي ورمعرفي کړی نه وم. دغه وخت ږما اوږده سپينه ږيره وه. نو اخوندزاده صاحب ښه بيداره ؤ.

ما پوښتنه وکړه چې څه پېښه ده. راته وويل سول چې پښتورګي ئې خراب سوي دي او په اوز ورځو کښي بايد وينه ورالېشه کړل سي. ما ورته وويل چې په کندهار کښي هر څوک ويشتل کېږي او وژل کېږي. له هغه ځايه څخه د چا پښتورګي ورته راوړئ چې وينه ئې ورسره سمون لري.

بله اونۍ چې زه د پوښتني له پاره و روغتون ته ورغلم صحت او ژوند ئې د اندېښني وړ ؤ. ورسره ږغېدلای نه سوای، يا د ږغېدني نه ؤ.

په دربيمه جمعه چې زه ئې بيا و پوښتني ته ورغلم، د کوټې پر بستر باندي ئې يوه ښځه پرته وه او يو سړی ورته ناست ؤ. دې ويل پرون راغلي يو. نو زه د روغتون د مريضانو د ثبت و دفتر ته ورغلم. دوی راته وويل چې څلور ورځي ترمخه ئې له روغتون څخه يوور. ما دوی وپوښتل چې صحت ئې څنګه ؤ؟ دوی راته وويل چې هغه مړ سو.

د تضاد په مقابل کښي فهم، حوصله او تحمل په کار دئ. اعتدال د انسانيت او ژوندانه اصل دئ. که اعتدال نه وي، افراط وي، انسانيت به هم نه وي. نو چيري چې انسانيت نه وي. ژوندون به هم نه وي.

پای

# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

## (د عبدالظاهر څرک په نوم)

**اتم لیک**

۱۹۹۹/۵/۲۸ع

ظاهر جانه ! السلام علیک.

پر ځواني دي برکت سه. برخوردار سې!

ستا د ۲/ ۱/ ۱۳۷۸ لیک ما ته پر ۳۰/ ۴/ ۱۹۹۹ په لاس راغی. ځکه چي زه د اپریل په ټوله میاشت کي پر کور نه وم، بمبئي یا په اوسنۍ املاء ممبئ ته تللی وم. کور دي ودان.

د نعیم جان د تکلیف تفصیل دي لیکلی دئ. واقعاً د خواخوږۍ مستحق دئ. ډېر عذابونه ئې ګاللي دي. اوس چي نسبتاً ښه دئ باید شاکر واوسو او واوسي. دی دي خدای نور نه خوږوي. ستا له همدردۍ ځخه مننه. خدای دي نور هم واک زیات کړه. ما هم په خپل نوبت او له خپله وسه سره سم د مرستي اخیستلو صلاحیت ورکړی دئ، ممکن استفاده ئې کړې وي.

تا ته به درمعلومه وي چي نعیم جان له دغه عذر پرته هم په مکاتبه او مخابره کي ډېر کمزوری دئ. ستا لاس دي د دردونو په امان وي اوس نو دا دئ تقریباً شپږ میاشتي وسوې چي مخامخ د ده له لوري حال نه لرم. خو زما له پاره دا څه نوې خبره نه ده. اوس لا عذر پر زیات سو: "العذر عند کرام الناس مقبول". دا خو زما شکایت دئ او وو، ممکن نعیم جان زما څخه هم شکایت ولري. خو د شکایت د لیري کولو لار د هغه مطرح کول دي. بله لار مستقیمه نه ده او د پټي خولې د درک له پاره کشف الصدور په کار وي چي دا وخت ئې عملاً څوک نه لري.

ډېر وبخښه چي په غیر واردو مسائلو ستا فکر مصروفوم خو زړه ته دا راګرزي چي خط خو بالواسطه هم لیکل کېدای سو او که دا تصور څوک ولري چي زه دي د خپلو مسائلو سره بې ارتباطه او بې اړېکي پاته یم دا نو هم یو بېځایه تصور باید وګڼل سي.

په هر صورت دا چي نعیم جان د خپلو عینکو او دواوو پر ځای د نظرمحمد او سلطان محمد د مځکي له بابته ستا له لاسه معلومات راکړي دي، هم ستا هم له هغه څخه مننه.

ستا جواب د مځکي له بابته کاملاً د واقع انعکاس او د تائید وړ دئ. خو که چیري ته

اضافي وخت ولرې زه به ئې تفصیل هم درته ولیکم.

امیر دوست محمد خان د سردار پاینده خان شپږم نارینه اولاد وو او د خپلو ۱٦ منکوحو له بطونو څخه ئې ۲۷ زامن او اوز لوڼې درلودې. د هغه تر مرګ وروسته ئې یو منځوی زوی چې د ده سره په هرات کې ملګری وو پاچا سو. دا پاچا امیر شېرعلي خان نومېدی. او یو وخت ئې د پاچهۍ پر سر د خپل سکني ورور سردار محمدامین خان سره د "دو پادشاه در اقلیمی نگنجند" په حکم د جلدک پر محل په جنګ کې دغه سکه ورور او توریالی زوی سردار محمدعلي خان دواړه مړه سول. سردار محمدامین خان د خرقې شریفې و مخ ته ښخ سو. هغه هم ښه وخت وو. که دا وخت هغسې پېښه سوې وای نو به ئې دواړه شهیدان بللای. تر دغه وروسته د عبدالرحمن خان پلار محمدافضل خان پاچا سو. د کندهار موجوده فرقه چې بعداً د جرنیل باغ وبلل سو هم د سردار محمدامین خان وه. د سرپوزې هغه مځکې چې د سردار محمدامین خان تر قفل لاندې د میانجوی له ولې څخه خړوبېدې هم د سردار محمدامین خان په جایدادونو کې وې. پر ولایت او ښو مځکو سربېره د پاچهۍ هوس هم ځکه پسې ورغی چې هغه وخت هم انسانانو د ځان واک نه درلود او مالک الرقاب ته ئې هر وخت اړتیا لرله.

د سردار محمدامین خان تر مړیني وروسته د هغه تر شا یوه لور پاته سوه، چې په بي بي ئې شهرت درلود. په سرپوزه کې د بي بي کلا هغه ځای چې اوس نیمه د حاجي غلام فاروق مرحوم د ورثې او سردار غلام دستګیر د ورثې په لاس کې ده - او دغه د اوبو قفل چې د میانجوی پر واله د دغو مځکو له پاره ولاړ دئ هم د بي بي په نامه - د بي بي د قفل په نامه یادېږي. بي بي لکه چې واده نه وو کړی. اما اولاد ئې محققاً نه درلود. یوه وړه محمدزۍ نجلۍ ئې په بنوت نیولې وه او خپله دغه دخترخوانده ئې بعداً سردار غلام دستګیر خان ولد سردار عطامحمد خان ته په نکاح ورکړه.

ځکه چې بي بي بل وارث نه درلود، یا هم سرداران په خپلو نیوکو ماړه وه نو د بي بي تر وفات وروسته د هغې جایداد و دغې ښځې ته چې دې لور کړې وه ورپاته سو.

سردار غلام دستګیر خان چې د خبرې په ماهیت پوه وو د ضرورت په صورت کې ئې لاس د دغه بادآورده جایداد په خرڅولو چلاوه او خپل د چاربناخي جایداد ئې چې ده رانیولی یا ئې موروثي وو سلامت ساتلی وو.

په دغه جایداد کې لومړی حاجي غلام قادر مرحوم ۲۲ جریبه ورپسې د سرکاتب پلار بازمحمد لالا او حاجي علي محمد او ورونو او حاجي ولي محمد او یوه بله کورنۍ چې مشر ورور ئې علي محمد لالا وو او د تره کې د پاچهۍ په سر کې د سیمي لومړی مړی وو د نامعلومو خلګو له خوا ووژل سو. هر یوه تقریباً دوه جریبه د خپلو کورو له پاره رانیول چې جمله (۸) جریبه سوه او د خندق پر غاړه واقع ده او په کلو ئې د حاجي عبدالله جان بارګزي سره دعوی پر وکړه.

وروسته بیا ما هم لس جریبه د خپل

ورور عبدالمجید له پاره هم د دغه سردار څخه رانیول. سردار غلام دستګیر خان یو ناسکه ورور درلود د عبدالعزیز په نامه یو لاُبالي – عملي – قمارباز سړی وو. کور ئې د ملا فرح الدین اخند په کوڅه کې وو. هغه به تل زما په باغ کې د قمار محافل راغونډول او نعل به ئې ټولاوه. کله چې ما منع کړ نو ده خپل د قمار بساط د جعفر طیار و زیارت ته ورنقل کړ. جعفر طیار هم چې زه پېژنم یو نفر وو چې حبشې ته په لومړي مهاجرت کې تللی وو. د ابو طالب زوی د عبدالمطلب نمسی وو. د سرپوزې په جعفرطیار نو زه نه یم خبر چې دا به لا څوک وي، له نامه څخه ئې ښکاري چې د تشیع سره به اړه لري. پک عزیز چې ولیدل د سردار غلام دستګیر خان لاس په بې مالکه ځمکو کې خلاص دئ او د ده دستګیري هم نه کوي په داسې حال کې چې دی دست به دهنه هم دئ لاس ئې د غلام دستګیر ګرېوانه ته وراوږد کړ.

سردار غلام دستګیر خان دمخه لا یوه وړه چاردېواري د ۳ – ۴ مربع متره په اندازه د جعفر طیار له موقوفه ځمکې څخه ځان ته بېله کړې او د یوه غوجل استفاده ئې ځنې کول. د دې له پاره چې د پک عبدالعزیز لاس له غاړې وکاږې دغه طویله ئې و هغه ته ورحواله کړه. پک عبدالعزیز په فوریت د دغې پارچې د خرڅولو له پاره ما ته رجوع وکړه او ما د یوه دارن او محتاط سړي په توګه له هغه څخه قباله وغوښته چې هغه رسماً دا کار نه سوای کولای او پاته سو. د تاریخ دغه برخه دي نو پر دغه ځای پاته وي.

وروسته ما د سیداحمدشاه ګوکش څخه یوه ټوټه ځمکه رانیول. دغه سیداحمدشاه یو کور هم د خپلې ځمکې متصل درلود نوموړي غوښتل چې هغه کور پر ما خرڅ کړي خو په ښار کې د یوه ښه محل په قیمت. ما جواب ورکړ. څه موده وروسته ئې پر نظرمحمد لالا (مارګیر) او سلطان محمد نورزي هغه کور خرڅ کړ نه یم خبر په څو.

په بله مرحله کې پک عزیز خپله نیوکه له زیارت څخه لاندې سوې ځمکه هم پر دغو خلکو خرڅه کړه. هغه پر دغه ځای بل کور ودان کړ او انقلاب پر راورسېدی. زما په تخمین د دغو دوو کورونو ځمکه نه باید تر زر متره مربع زیاته وي، او که چیرې انقلابات او بحرانات شیانو ته امتداد ورکاوه نو به ئې دا ځمکه هم سره غزولې وي او ۱۸۰۰ متره به ئې کړې وي. دا خو د ځمکې تاریخچه سوه او زما جواب به په هیڅ صورت ستا تر مشورتي جواب زیات بلاغت و نه لري. ځکه زه ستا جواب کاملاً تائیدوم او که حاشیه روي جواز ولري نو دا به هم پر زیاته کړم چې:

۱/ د شفع حق چې بالذات تر باطل هم کمواکه دئ د ضرر د دفع له پاره ئې پېش بیني سوې ده. ما خو له اوسنیو ګاونډیانو څخه نه خیر لیدلی دئ او نه هم شر. نو به زه پر مجهول ګاونډي پر څه د خطرناک حکم کوم؟ په داسې حال کې چې زما د ژوند لمر اوس په خپله د غره پر څوکه ولاړ دئ او د شاعر په وینا چې:

قطع امید کرده نخواهد نعیم دهر
شاخ بریده را نظری بر بهار نیست

۲/ ستا فرموده د مکرر تائید وړ ده چې زه نه د رانیولو واک لرم نه ئې شوق لرم. که دا مځکه د کورونو له پاره وي نو موږ تر دغه مناسبې او زیاتي مځکي د تعمیر له پاره لرو. که د زراعت له پاره وي نو له دغه پاوکم جریب څخه به څه جوړ سي؟ دا قیمت چې مالکان ئې یادوي یو تصوري قیمت دئ په داسي حال کي چې یوه بالو خښته په ۷۲۰ افغانۍ او د بناء مزدوري د ورځي یو نیم لک افغانۍ وي نو که چا ته له غیبو پیسې راغلي وي یا قومندان وي هغه به حق ولري چي په دغه حال کي د مځکي متر په ۵۰۰ کلداري یا د ټوکیو په نرخ ورته رانیسي او که د زراعتي مځکي په نیت رانیول سي نو هم هغه خبره ده چي زه پور غواړم ته نور غواړې؟ یا چي نه خورې له هغه باغه غم ئې پر څه خورې ...

بسیار آزمودم ازوی نیر رســـــودم
من جرب المجرب حلت به الندامه

په دا ۱۹ کاله زما د جایداد حصول د ط تکی دئ او که جایداد د پخوا حال ته رسول وغواړو نو شل نور کلونه هم باید روژه ورته ونیسو.

بیا هم د قیمت خبر: په داسي حل کي چي د یوې میاشتي د مجاهد مصرف تر ۱۵۰ لکه بالا دئ. د جریب مالیه ۵۰ زره سوه، زکوة پر سر خرمن. نور خرچ او خراجات چي هم پر ولوېږي زه نه پوهېږم چي په سد کي سرې به بیا هم پر مځکه، هغه هم په دغه قیمت همیاني ورخلاصه کړي؟ والله اعلم.

که چیري مناسبه موقع میسره سي باید زه له موجوده پېکړو څخه ځان او اولاد خلاص کړم نه دا چې پر بار سرباري کښېږدم. شیدو سوی شلومبې پوکي. مار چیچلی له اوږده پړي څخه ډارېږي. بیا نو په داسي حال کي چي دائې قباله منې ئې په چا؟

باسر بی دولتان دولت نه گردد جفت اگر
از پر و بال هـــــما ســــازند پر بالشت را

زما له پاره دا خبري اوس د خیال پلو، یا "نان ما به اون دوشاب" حکم لري یا په عامیانه اصطلاح چي چا په کلي کي نه پرېښود ده ویل زما اسپه د ملک پر بام وتړئ. یا دا چي زه دي باغ نه وینم ته وایې تارو درغی. سل خبري سر ئې یو. تا غوټه پر وخت خلاصه کړې ده او ښه دي خلاصه کړې ده. کور دي ودان.

زه به هم یوه د اورېدو او یوه هم تقریباً د مشاهدې قصه ستا د نوي کال د پټو مبارکیو په تعقیب چي گویا بیا به په تاریخ کي یادېږي درته ولیکم:

د امان الله خان د تجدد په لړ کي یو هم د لاتین حروفو معرفي وه، چي د ترکیې په پیروي ئې غوښته د پارسي الفبا پر ځای ئې راولي. په دغه نسبت نو سقویانو تعلیمیافته گان او متجددین، لاتیان بلل چي مفرد ئې لاتي او نسبت ئې د لاتین سره دئ. تعلیم یافته یا متشکل د هغه په اشکالو هر چیري تر اضطهاد او شکنجې لاندي وه. امان الله خان په خپل وخت کي د صنایعو مکتب جوړ کړی وو. چي اصلاً د متسظرفه صنایعو مکتب وو. د غالیو اوبدلو شعبه ئې هم درلوده او د هغې شعبې له پاره ئې ایراني استادان استخدام کړي وه. په عام گیر او گرفت کي دغه اجل نیولي هم په گوتو ورغلي وه او د لاتي په اشتباه

تر شلاقو لاندي اچول سوي وه.

د لرګي په مقابل کي خو غوښي مقاومت نه لري. تر وهلو لاندي تاو تاو سوي، نارې ئې کړې. يوه هوښيار ئې بوغاري وهلي دي چي موږ خارجيان يو. ممکن په مزار کي ايراني ديپلوماتانو هم دا تاريخ تکرار کړي وي. ضراب باشي چي هر څوک وو. قومندان وو. امير وو يا بل هر شی چي وو. کله چي د مضروب بوغاري او بلغاکي اورېدلي دي. تر لاس لاندي خلګو ته ئې په تاکيد امر کړی دئ، چي بزنين پدر ... که او نه خودش ميګه که ما خوارج هستيم. محکم بزنين ...

يو وخت د يوه بافهم شفاعت ګر په وساطت خلاص سوی وو او هغه ئې بيا بل شوډنګ دئ. چي قومندان ورته ويلي وه چي بس يا بس شان اس. اما چوبکيانو په خپل شوق وهلو ته دوام ورکړی وو. با ادبه ايراني د دې له پاره چي ضاربان له ضربه توقف ته دعوت کړي چي د قومندان سره د غوره مالي په لهجه ئې نارې کړې چي: عاليقدر جلالتمآب ميفرمايند بس. تر څو دغه افاده و کوڅه دربانو ته رسېدل مزيد وهل ئې هم وخوړل.

بل نو تازه نقل دئ:

کله چي مجاهدينو کابل د کودتا په مرسته له ملحدينو څخه لاندي کړ. نور خو نو هر څه معلوم دي. توپکيان به توپکان په اوږو کي هري خوا ته ګرزېدل. يو چيري ئې په دريم مکروريان کي سترګي پر يوه سپين ږيري برابري سوي دي چي لمر ته په لڅه بالاتنه ناست دئ. هغه چي د دباندي وتلو قابو نه درلوده دا ئې غنيمت ګڼلې وه چي کم از کم د لمر غسل خو وکړي يا هم د عصري پيتاوي څخه خوند واخلي.

که ګوري چي دروازه په درج وټکېدل او د فوري راوتلو قومانده ورکول سوه. د پيتاوي تښتن چي د کور يوازيني نرغاړی وو چټک ور ووت او په دغه نيم لڅ ځان په ګوسړو او پوري وهلو مخ پر کښته وبهول سو. د کور ښځو چي تر چولو دا حال وليدی په ژړا ئې محشر جوړ کړ. له نورو کورونو څخه هم نر او ښځي راووتل حال ئې وپوښته. په دغه ترڅ کي وفامل د غلام دستګير خان معاون ګمرک (په کندهار کي) زوی تر احساساتو لاندي سو په لڅو پښو ئې پسي ورمنډه کړه ور ورسېدی. پوښتنه ئې وکړه چي ګناه ئې څه ده؟

شريعت مآبانو ورته وويل چي د ستر عورت رعايت ئې نه دئ کړی. لاتي و مجاهد ته د ستر عورت حدود په نر او ښځه، حر او عبد کي تفاوتونه ور په ګوته کړل چي هغو په جواب کي ورته وويل موږ اسلامي ستر عورت يادوو. الحادي او کمونستي ستر عورت نه غواړو. وفامل په داسي حال کي چي ږيرخريلی هم وو فوراً ئې يو عملي تدبير ته رجوع وکړه او ژر ئې خپل کميس په هغه واغوست او دی په انګيا او پرتاګه کي ورته ودرېدی او ورته وئې ويل چي دا ئې ستر عورت.

توپکيانو يوه و بل ته وويل: توبه په وکاږه ايله ئې کړه. څکه هيڅ عجبه نه ده چي اوس دا منځګړی پرتوګ هم درته غورځوري. پر دغه سره خلاص سوه. څکه هغه وخت لا د امر معروف او نهي عن المنکر اداره نه وه جوړه سوې. که نه نو تر مجرم به ئې د منځګړي جزا

درنه ورکړې وای. ځکه هغه خو د زړو ګوتمې، هم په ګوتو کولې او د زړو غاښونه ئې هم درلودل. د عادت سره سم بیا هم د مرحوم شیخ صاحب منقبت:

غالباً به مې پخوا هم درته کښلي وي چې خدای بخښلي شیخ صاحب د خپل قوم (پښتون) سره ډېره مینه درلوده او حتی ډېر ځله ئې د هغو معایب نه سوای لیدلای، مثلاً دا چې دغه خلګ غله یا خس دزده دي. هغه مرحوم برخلاف امین او سم خلګ بلل او د دې له پاره ئې هر وخت مشخص مثالونه تعمیمول. په موږ هم چې دغه ناروغي راپورې وه بیا مو هم کله کله مخالفت ورسره کاوه او پر عدم قناعت به سره ولاړو.

خو د عمر د پای و خوا ته شیخ صاحب له یوې خوا و تصوف ته مائل سو او له بل لوري ئې دغه احساس هم مهار کړ.

په مخه دي ښه الله دي مل سه
مخلص –هاتف

**نهم لیک**

۱۹۹۹/۶/۳۰ع

ګران حاج عبدالظاهر جان صاحب!

السلام علیکم.

هیله ده چې د پورته او کښته کورنۍ سره په خیر یې. مشران دي روغ جوړ، کشران دي خوښ خوشحاله وي او همزولي دي له عافیت ځخه بې برخي نه وي. زموږ سلامونه ورته وایه.

ستا د ۹۹/۶/۱۳، ۹۹ خط پر ۹۹/۶/۲۲، ۹۹ راورسېدی. په کور کي چې دي زما د ۹ لیک د رسېدلو اطمینان هم راکړی دئ زما د مکتوب د رسېدلو او وروستنۍ پېښي تر منځ به توارد ممکن ستا له پاره حیرانتیا راوستلې وي. دا البته د شاعرانه توارد په دود توارد نه دئ، ځکه نه خیال غواړي نه نازکخیالي:

هر که ناموخت از ګذشت روزګار
هیـچ نامـــوزد زهـیچ آموزګار

ما ته پر دغه حال او ډېر ځله و دغه ته پر ورته حالاتو د مرحوم شیخ صاحب داهیانه او الهام بخښونکې وینا چې هغه ته هم په خپله یو الهام سوی نظر وو، سترګو ته جګه ودرېږي. کوم چې مرحوم د تصوري اقتدار په صورت کي له هیواد ځخه پر یوه نامعلوم لور د پرواز له پاره طیاره راغوښته او دا هغه شیخ صاحب وو چې په سعودي عربستان خصوصاً په دنیایي او دیني لحاظ شګوفائي مدینې منورې کي ئې د اقامت (د دائمي پاتېدو یا تابعیت) او هیواد ته د ستنېدو تر منځ په انتخاب کي وطن ته عودت په وطني لباس کي دننه غوره کړی وو او دغه عودت به هیچا نه وو منلی مګر دا چې وطندوستي یا په نوې اصطلاح وطنپرستي ئې په افراطي درجه کي نه وای.

زه چې تر دې وخته لا هم د مرحوم شیخ صاحب د لومړني نظر سره پاته یم معلومه نه ده چې لا به تر کله پاته یم خو دا خبره هم کله کله زړه ته راګرزي چې په هغه وخت کي خو دغي خبري کاملاً مصداق درلود چې "ارض الله واسعة" اوس خو لا پاسپورټونه، وېزې، پیسې، صحي تصدیقونه، د کار تخصص ... د سنګینو جرمونو عدم ارتکاب نوي بندیزونه دي چې د خدای تعالی لو مځکه ئې محدوده کړې ده. کرښي ئې پر راکښلي دي او نژدې

دئ چي پر ستورو هم غبرګ راوګرزوي او قباله ئې کړي او د تصرف ادعا ئې وکړي. خو زموږ نيګه ګانو چي له بده مرغه ئې معلومات او جهان بيني محدوده وه چا ړانده او چا کڼه کړه چي د نړۍ سمسوري پر مخ تللي مځکي ئې په سترګه نه سوې او د دهلي تخت ئې د پښتونخوا د غرو د سرو په مقابل کي هغه هم داسي د غرو سرونه چي زما تر سر ډېر لځ دي او شين ډوک باندي نسته هېراوه؟؟؟ او پر دغه محدوده پورته کښته سره ګرزېدل. ايله چي اوس د روس د سر په صدقه ئې سترګي پر وړاندي تللي نړۍ خلاصي سوې.

"عدو شود سبب خير اګر خدا خواهد"

زما د توهم پر بناء د ملا عبدالولي[1] پېښه څه تصادفي خبره نه ده تر شا ئې د لمسون لاسونه پټ بولم، کله چي کابل ته هم د مجاهدينو ... مبارک قدم وارد سو هغه وخت هم تر هر چا وړاندي زما د وزير اکبرخان د کور پوښتني د ملا ملنګ په لمسون پيل سوې او د هغه ... په هڅونه د ملا خالص قوماندان د قاضي محمدامين وردګ په نامه په ننووت کور ئې تر هغه وخته قبضه کړی وو څو ئې د دوستم سره جنګ وسو او د هغه جنګ د شکست په نتيجه کي ئې زما کور د دوی د نورو اولجو سره داسي پرېښود چي لم ئې په خاشه نه بندېدی. هی چي به دي خير وي زما کور ئې د لامالکه سقطی او لقطی په شکل پرېښود

او دومره لاس پر لاس سو تر څو موږ ته بيرته راسپارل کېدی د پېژندلو وتلی وو. دغه ډول حوادث چي فقط زه ئې په نخښه کړی يم ضرور تاثير را پيدا کوي. همدغه ډول عمل د تره کي په دور کي زما سره وسو، چي د مرحوم احمدعلي اخوندزاده په سرای کي درې واره زما کوټه لوټ سوه. په داسي حال کي چي تر څينو بدايانو تجارانو لاس اړول سوی وو.

د دې خبري مثالو ته ادامه ورکولای سم خو دغه دوه به کافي وګڼم. د جايداد غصب، د کور او ګودام سوځل هم دغه ډول استثنايي عملونه دي. زه اوس نسبتاً په عادي سوی يم خو دغه چا چي اوس ئې زه په نښه کړی يم پر دغه سر ببره چي اخلاق ئې د ستايني وړ نه دي لاس ئې هم ککړ دئ.

دنيا آنقدر ندارد که بر او رشک ببرند
يا وجود و عدمش را غم بيهوده خورند

اما پر عام او مظلوم اولس خو د انسان زړه حتی تر خپل ځان وړاندي او ډېر بايد وسوځي. په دغه مورد کي ستا له توجه څخه هم په ناشکري نه سم تېرېدای، ستا د سترپا او خواخوږۍ څخه ډېره ډېره مننه.

او دا چي ته وايې په جنت محل کي د مځکي مربع متر په ۲۵۰۰ کلداري خرڅېږي په داسي حال کي چي يوه خښته په ۸۳۰ افغانۍ او د مزدور ورځنۍ مزدوري ۸۰ زره افغانۍ ده، تا پوښتنه کړې چي زما نظر په دغه مورد کي څه دئ؟

زما هغه قصه را په زړه کېږي چي په کوم ښار کي قوماندان د يوه کال له پاره مقررېدی، تر کاله وروسته به د بعدي قوماندان د انتصاب

---

[1] ملا عبدالولي د طالبانو د امارت په وخت کي د کندهار د قضايای دولت رئيس وو. ده وړانديز وکړ چي د هاتف جايداد بايد ټوله ضبط سي، اما د طالبانو د مشر ملا محمدعمر له خوا دا وړانديز رد سو (څرک).

طریقه دا وه چي د معزول قوماندان لاس به ئې پر ملاء عام ورغوڅ کړ. او د منتظرینو د جمعیت پر خوا به ئې لوړ ورغورځاوه. هر چا چي به د نیولو سعادت تر لاسه کړ هغه به د خپل سلف په دود د یوه کال قوماندان وو او طبیعي نتیجه ئې هم معلومه وه چي د لاس قطع وه:

گوسفندی پی بر داین گرگ مزور همه روز
گوسفـــندان دگـــر خـــیره در او مینگرد

زموږ په محدود ژوند کي ډېري دنیاداري کورنۍ او پېږۍ لادرکه سوي دي چي د نومونو فهرست ئې دومره روښانه دئ چي ویل نه غواړي؟

په بې کلتوره ټولنه او وړې مځکه کي د مصئونیت او امنیت احساس کول لو خطا ده. د شیخ صاحب د طیارې راغوښتل څه ټوکه نه وه، بلکي د حکمت موعظه وه. بیا تکراروم بې فرهنگه او وړې ټولنه: "در خانه اگر کس است یک سخن بس است". کم از کم دا دوه سوه پنځوس کاله دغه حال چلېدلی دئ موږ لا د سبا په امید ورته ناست یو؟؟؟ دا خطا زما حقدارانو کړې ده، زه باید پرې نه ږدم څوک په دغه شکل او دغه لومه کي بند پاته سي. دا ئې زما نظر د مځکي د قیمت له پاره.

سنگ بدخشان اگل لعل گردد
به دیـــدار بدخـــشانی نیرزد

بالاخره به دا هم درته ولیکم چي عقیده مي ده چي له لوږي به نه مرم. خو بد مخ او بد برخورد نه زغملای سم او نه هېرولای سم.

مخلص

هاتف

تولوونکی: حاجي محمد رزمي

## گل خبري

- هغه څوک چي د خپل ځان بادار دئ کېدای سي چي د نورو بادار هم واوسي.
- هغه څوک چي د دوو بادارانو نوکر وي ضرور باید یوه ته دروا غ ووایي.
- شر موښ به خپل غاښونه د لاسه ورکړي خو خپل خوی به د لاسه ورنه کړي.
- د خلکو سره داسي ژوند کوه چي گني خدای دي ویني او د خدای سره داسي ږغېږه چي گني خلک دي اوري.
- هلته چي پیسې مخته رهي وي ټولي بندي دروازې خلاصېږي.
- خپل ځان د او سپنې په دېوال مه ساته بلکي د ملگرو په ټولۍ ئې وساته.
- که ما کولای سوای چي خپل ژوند بیرته د سره پیل کړم ما به د موسیقۍ څخه پرته بل کار نه وای کړی.
- کله چي زه یو ملگری د لاسه ورکوم یوه اندازه مر کېږم.
- د پیسو شکل ځکه گردی دئ چي هغه باید د هر چا څخه وځغلي.
- کله چي زه پیسې ولرم هر څوک ما ته ورور وایي.
- واده هغه یوازینۍ جگړه ده چي په هغې کي دوه دښمنان یو ځای سره بیدیږي.
- موسیقي د انسانانو تر منځ د زړه خواله کولو تر ټولو بشپړه او ښکلې لاره ده.
- ملگر تیا په نورو ټولو حالاتو کي دوام کولای سي خو نه د میني او د دفتر په شرایطو کي.

هارون خپل شعشعي/ لندن

# وختونه او يادونه

(شپږمه برخه)

سهار وختي سبحان او زه د وېش و خوا ته ور رهي سوو. دا ګړی په وېش کښې د هر بل وخت پر خلاف، د خلګو او موټرانو د ډېروبار هيڅ اثر نه ښکارېدئ. ويل کېده چي د کندهار لار له ځو روځو راهيسي د پسرلنيو اورښتو په سۇَب، د موټرو او لارويانو د استفادې وړ نه ده؛ خو ما دا خبره په اسانۍ نه سوای منلای. مېرمني او اولادو ته مي د ځان رسولو په خاطر، د اورښتو او سېلاوو په خطر کښې، هيڅ چورت نه واهه.

– سبحان پاچا! ته راځه و هغه فور باى فور ته ور سو، چي وکندهار ته ځي که يا؟

– درځه!

– استاذه! لار څنګه ده؟

– ولا موټران خو ځي و راځي.

– موټران چي ځي و راځي، نو مانا لار سمه ده.

– دغسي يې و بوله.

– در وخېژه وروره! دا کومک والا موټر دئ. په لار کښې نه بنديږي. د موټر کلينر په زوره را ږغ کړه.

– د موټروان او کلينر په خبرو نور هم ډاډمن سوم. په داسي حال کښې چي د موټرانو او مساپرو نه ګرزېدل، خړپړ اسمان او لندې خيشتې مځکې ټولو د موټروان او کلينر د خبرو پر بُطلان شاهدي ورکوله. سره له دې مي هم نور يوه ثانيه په چمن کښې پاتېدل زړَه نه غوښتل. له سبحان لالا څخه مي د رخصت اخيستلو غوښتنه وکړه.

– هارون جانه! نن چي دي صبر کړئ وای، سبا ته به انشاء الله هوا نوره هم ښه سوې وای. سبحان په خپل متين اواز را غبرګه کړه.

– توکل پر خدای دئ. موټروان او کلينر خو به دواړه درواغ نه وايي. نه ګورې په موټر کښې نور مساپر هم ناست دي.

داسي مالومېده، چي نور مساپر هم ما غوندي خوش باوره يا تلواري خلګ وو.

– سبحانه وروره! خه په مخه دي ښه. زه به موټر ته ور وخېژم. ته کرار کرار کور ته ولاړ سه، چي هوا يخه ده. سبحان، زما پر ټينګار سر ښېره هم و خدای پاماني، ته زړَه نه ښه کاوه. شايدکله بې په اورښتو او سړو هواوو کښې د دې دښتو او رودو پر خوا مزل کړئ ؤ.

بالاخره یې زړه نا زړه خدای پاماني وکړه. زه هم بېله ځنډه وموټر ته ور و ختلم. لږ ګړی وروسته یو بل مساپر هم را پیدا سو؛او په دې ترتیب د نور درېدو هیڅ پلمه نه سوه پاته.

له چمن څخه تر بولدکه پورې څو کیلو میتره سړک بې ځینو کوچنیو ډبو او کډو، چندان ورانی نه لاره. له دې اسیته یې دا لار د سترګو په رپ کښې و وهله؛ او په ښی خوا کښې د غرو، دښتو او رودو پر لور سیخ سو.

د لاري په اوږدو کښې د موټرانو تګ راتګ چندان نه ؤ. له مقابل لوري څخه به کله ناکله د جهادي قوماندانانو یو و نیم کروزینګ یا فور بای فور جیپ را ښکاره سو؛ خو د چمن له خوا، بې زموږ موټره، بل هیڅ شی نه تر سترګو کېدئ.

زموږ د «کومک والا» جیپ ارابې زیاتره په پستو خاورو او ختېنو مځکو کښې څرخېدې. بېوزلي مساپر، په تېره بیا ځوانان به د سترګو په رپ کښې را کښته سول؛ او په زوروره ټېله بې موټر جګ له ختو او ریګو را وایستئ. دا ځورؤنکی حالت څو واره تکرار سو؛ حال دا چې ځینو خوش باوره مساپرو د موټروان او کلېنر د ناروا تبلیغاتو په وجه، د سفر په شرو کښې داسي انګېرله، چې ګوندي دا معجزه ګر موټر به تر ارغسان هم مخامخ واوړي.

څه به مو سر ګرزوم، تش په نامه کومک والا جیپ زموږ په ټېلو او ټمبو د یوه نیم – دوو ساعتو لار په شاوخوا درو نیمو – څلورو ساعتو کښې و وهله. د ارغسان رود (سیند) و حدودو ته په رسېدو سره نابېره د زیاترو مساپرو تر خولې د «خیر» او «فضل» نارې پورته سوې. په ریشتیا هم د ارغسان ارام او راڼه رود داسي هیبتناکه او وحشي څېره اخیستې وه، چې په مازې کتلو یې بېوزلو مساپرو تراه کوله.

کله چې شپږ میاشتې مخکې یاني د تېر کال په مني کښې و پاکستان ته اوښتم، همدغه ارغسان رود په تر ټولو پراخ ځای کښې تر څورلسو– پینځلسو میترو اړت او په تر ټولو غوچ ځای کښې تر دوه – دوه نیم میتره زیات ژور نه ؤ. رڼو او زلالو اوبو یې وګرمۍ ځبلو مساپرو ته د وچو دښتو او خوړو په زړه کښې جنت ډوله تازګي او دمراستي ورکوله. مساپر بې وغاړو ته په را رسېدو سره، له موټرو را کښته کېدل. چا بې په لپو لپو اوبه څښلې؛ چا به اودس په تازه کاوه؛ چا به د سترړتا او ستوماني لیري کولو په خاطر مخ و لاسونه په پرېولل؛ او بالاخره ځینو نورو بې د بیدیا په ګرمه او دوړنه فضا کښې له ښکلا او طراوت څخه ژور خوند اخیستئ؛ خو نن د همغه ارغسان خښمناکو او سرکښو څپو د دواړو غاړو دونه مځکې لاندي کړې وې، چې هري خوا دي سترګو دیدکاوه، یوازي خړې او توپاني اوبه لیدل کېدې او بس.

د رود و سواحلو ته په نیژدې کېدو سره، کلېنر په چټکۍ سره د لاري د نیمایي کرایي غوښتنه وکړه. ځینو مساپرو د اعتراض په ډول په خپلو منځو کښې پس پس شرو کئ. ځینو نورو په ډاګه ور ږغ کړل: وروره! ارغسان خو د لاري نیمایي نه ده، نو تاسي څنګه د نیمایي لاري کریه (کرایه) غواړئ! ځینو نورو له درده و ویل: دا خو ولا که د خدای او رسول لار یې،

چي اول خلگ په درواغو او دوکو موټر ته وخېژوي؛ او بيا يې د لارې په منځ کښې ايله کړي.

د موټروان او کلينر له چمن څخه لا په دې خبره ښه سر خلاص ؤ، چي لار د موټرو د تګ را تګ وړ نه ده. تر ارغسان پورې وتل خو يې په اروا کښې هم نه ګرزېدل. په دې خاطر يې د مساپرو پر ډول ډول ګيلو و مانو سر بېره سمدلاسه د نيمايي لارې کرايه حمله کړه؛ او په څو شېبو کې بيرته په هغو کسانو ډک کړ، چي په نامېندۍ سره د چمن د موټرو په هيله د رود پر دې غاړه ولاړ يا ناست وو.

په موټر کښې مي و څنګ ته يو جګ، نري، صوفي څوان ناست ؤ، چي له تور رنګي پاکستانۍ سدرۍ سره يې نوې زرين ليکه ماشي لونګۍ تړلې وه. د سرې هوا د مخنيوي دپاره يې نسوارې رنګه پنډ ورين پټو پر ځان را پېچلئ ؤ؛ او له يوې غوټکۍ سره يې خورا غټه توره چترۍ (سايوان) هم په لاس کښې نيولې وه. له خبرو او جولې څخه پټمن او دروند شخص ښکارېدئ.

د رود پر دې غاړه د هوټل په نامه يوه کوچنۍ بې کړکيو خټينه خونه ولاړه وه، چي ښايي په تنګه تنګبستۍ کښې هم تر لسو- دولسو ډېر مساپر نه واى پکښې ځاى سوي. د تېزو او پرله پسې اورښتو په وجه يې د چت وضعه هم ډېره خطرناکه ايسېدله.

له موټر څخه د مساپرو تر کښته کېدو څو شېبې وروسته اسمان پر داسي لايزار خوله خلاصه کړه، چي په دوو- درو دقيقو کې د زياترو مساپرو پټوان، کالي او حتا بوټونه لانده خيشته کړل. له زياترو مساپرو څخه د ځان نيهامولو هيڅ اسره او وسيله نه وه؛ خو زه د خپل کنداري ملګري د زړه خلاصي چترۍ په کومک له خيشتېدو څخه و ژغورل سوم. د کنداري ځوان، نواب جان، د چترۍ راوړلو تدبير مي په ټوله لار کښې ذهن مشغول کړئ ؤ. په کندهار ښار کښې مي حتا د سولې او ارامۍ په کلونو کښې لا د چترۍ کارولو عادت چندان نه ؤ ليدلئ؛ خو ده د جنګ او تباهۍ په کلونو هغه هم د چمن - کندهار په غرو او دښتو کښې دا معقول عادت ژوندى ساتلئ ؤ.

د ارغسان وحشتناکو او لېونيو څپو د لارې ټول مساپر په ځان پورې اريان کړي وو. بېوزلو نه و چمن خوا ته د بيرته ستنېدو څه وسيله لرله؛ او نه يې د کندهار پر لور له ياغي ارغسان څخه د اوښتو څه سوچ او خيال کولاى سواى. يخ، سېلۍ، باران او ژلۍ هر څه يې له ناچاريه پر سر و سترګو منلي وو.

د اسمان پر مخ د تورو او خړو اوريځو ناپايه کتارو تر هر بل څه د مغضوبو مساپرو پر روحي حالت ناوړه اغېزه کړې وه. د ماپښين پر دوو- دوو نيمو بجو د ماښام د شپېرو- اوو بجو د تورو تيارو وزرونه غوړېدلې وو. په نيمه لار کښې پاته مساپر د شپې و را رسېدو ته ډېر زيات اندېښمن وو. ښايي زما او نواب جان اندېښنه تر نورو مساپرو هم څو کوټي زياته وه. د هوا سړښت، پرله پسې اورښتونه، لندبل، لوړه، ستړيا او په نيمه لار کښې د غرو، دښتو او رودو ترمنځ بې هدفه درېدل، ټول هغه عوامل او دلايل وو، چي د هر مساپر په زړه کې د اندېښنو او پرېشانيو غرونه درول.

د اندېښنو او پرېشانييو په دې حال او فضا کښې نابېره د رود پر غاړه یو گيردی چارشانه سړی را زرغون سو، چي په کوچياني لهجه يې د پينځو سوو افغانو په بدل کښي تر رود د مساپرو د اړولو ناري وهلې. د سړي د نارو په اورېدو سره مي سمدلاسه و نواب جان ته ور رغ کړه:

– اندېواله! ته راسه دا سړی څه وايي؟

– راځه چي ور نيژدې سو. نواب جان را غبرگه کړه.

زما گومان دا ؤ، چي کوچی ماما به په کښتۍ يا جاله کښي خلگ تر راده پوري باسي.

– اکا څنگه مو پوري باسې؟ کښتۍ مښتۍ يا جاله ماله دي چيري ده؟

– جاله ماله نسته. دغسي مو پوري باسم.

– دغسي مو څنگه پوري باسې؟

– ما ته گرده رود گودر په گودر را مالوم دئ. ولا که مو وبښته لا را څه (څخه) لوند سي.

د رود وخښمناکو څپو ته په کتو سره ما او نواب ته د کوچي ماما پر دې خبرو خندا راغله.

– عجبه ده په دې خړو اوبو به موږ خپله گډيږو، له دې لېونو څپو سره به موږ خپله ډغري وهو، خو پينځه پينځه سوه به هم سړي سر تا ته در کوو. دا کمه مسلماني ده؟ ما او نواب جان په بوڼ بوڼ يوله بله و ويل: او بيرته د نورو خلگو و خوا ته را رهي سوو.

– اندېواله! که نور هيڅ مخ ته ولاړ نه سو، د رود آ خوا ته خو کم از کم لوی هوټل سته، چايي او ډوډۍ خو پکښي خوړلای سو؛ شپه خو پر ارامه پکښي تېرولای سو. نواب جان په نسبتاً ستومانه او خړېدلي رغ و ويل.

– نواب جانه! خبري خو دي په سل کښي سل سهي دي؛ مگر د رود آ غاړي ته به خانونه څنگه رسوو؟ ته و هغې جگې لارۍ ته نه گوري، چي نوره گرده په اوبو کښي ډوبه ده، یوازي يې د جنگلې څوکه مالوميږي.

– هو دې خوا ته نوري لارۍ هم ډوبي پرتي دي. نواب په نامېنده رغ را غبرگه کړه.

زما او نواب تر منځ لا همدا بحثونه جاري وو، چي نابېره له یوه سر خلاصه خړ رنگه جگ فور بای فور جيپ څخه د څورلسو – پينځلسو ځوانانو یوه ډله را کښته سوه. موټر يې تر څو دقيقو څنډ وروسته بيرته خالي د چمن پر لور رهي سو. په جيپ کښي سپاره کسان د کندهار د سيمي مجاهدين ښکارېدل، چي په پاکستان کښي د خپلوانو تر ليدو کتو يا ځينو کارو وروسته بيرته و خپلو اوتاکو او مورچلو ته روان وو. ترڅُد او دوه زړه توب يې په وينو کښي نه ؤ. په څو شېبو کښي د ډلي له ملگرو څخه دوه کسه د ارغسان و خړو اوبو ته ور ولوېدل، چي په دې توگه خپلو نورو اندېوالانو ته د وتلو خوندي لار او رَوده ور و ښيي. غير له دوو – درو خايو څخه چي د زړورو او بې باکو کنداري مجاهدينو لارښوؤنکو د لړو اوبو په گودر موندلو کښي تېروتنه وکړه، د ارغسان په څو سوه ميتره پسور کښي له بل هيڅ راز څنډ او تکليف سره مخامخ نه سول. له کاړه واړه تگ څخه يې داسي ښکارېدل، چي تا به ويل د سترگو په ديد د اوبو لړوالي او ژوروالي گچه

اټکليي، د لاربښوونکو تر پوري وتلو وروسته د ډلي پاته خوانان هم پسو او وزګرو غوندي و اوبو ته ور و غورځېدل؛ او د خپلو لاربښوونکو ملګرو رَوُدَه يې په خوله ورکړه.

د مجاهدو کنداريانو دې زړور او بې باکه عمل زما او نواب جان په زړو کښي هم د زړورتيا او بې باکۍ احساس را وپاراوه. په دغو سختو او خطرناکو شېبو کښي مي نابېره د پښتو د لوی او پياوړي شاعر، خوشال خان خټک، دا الهام بخښوونکی بيت په زړَه کښي تېر سو:

که فلک دي د زمري په خوله کښي ور که!

د زمـــري په خوله کښي مه پر بېږده همت

نواب جان خپله غوټکۍ په پټو کښي و پېچله؛ او چترۍ يې د ساتني دپاره و ماته را و سپارله. ما هم خپله نسواري وزمه کورتۍ، خړه لونګۍ او تور بوټونه په ژمني پټو کښي ټينګ و نغښتل؛ او له اوږو سره مي په شا پوري کلک و تړل.

– انډيواله! زه خو به تر خپل وس زيات کوښښ وکم، چي سايوان دي سهي و سلامت پوري باسم؛ په دې چي د راده پر دې غاړه يې زموږ دواړو په ساتنه کښي لوی خدمت وکئ. سره له دې هم که د سر ډوبېدو خطر راغئ، بياد ګيلې حق نه لرې. اوس لا خپلي غاړي در ته خلاصوم. نواب جان ته مي په خندا و ويل.

– خدای دي ما و تا په خير پوري باسي، د سايوان غم مه کوه! نواب را غبر ګه کړه.

زه چي په کوچنيوالي کښي د سرپوزې له ولو څخه نيولې بيا تر لو والې او ارغنداو رود پوري په هر راز اوبو کښي لمبېدلئ وم. د کندهاري ځوانانو د زړور او بې باکانه عمل په لېدو سره سيده په اوبو ور ګډ سوم. مخکښي بېره او تراه مي له سره والوتله. کوچنيوالي غوندي مي د پرتاګه پايڅې تر ورنو را و نغښتلې. دې کار تر لندېدو وروسته و پرتاګه ته د بوغۍ بڼه ورکړه. د ملګري چترۍ مي په راسته لاس کښي واخيسته؛ او د کنداري مجاهدينو پر رَوُدَه ور رهي سوو.

د چترۍ وړل په لړو اوبو کښي ګران نه و؛ خو ډېرو اوبو ته په رسېدو سره يې وار په وار ساتنه ګرانېدله؛ ځکه د اوبو فشار ډېر زيات او تر پښو لاندي ډېري ډېري ښويدوونکي وې. د اوبو د ژوروالي ډېره برخه د راده تر نيمايي وروسته شرو کېدله. ښايي موږ به د مجاهدينو له رَوُدې څخه يو څه پر غلطه تللي وو، چي مخ ته مو د اوبو ژوروالی وار په وار ډېرېدئ. دونه ډېر چي د راده د پوري غاړي په تقريباً لسو ميترو فاصله کښي د اوبازۍ (آببازۍ) اړتيا پيدا سوه. د کنداري مجاهدينو په پيدا کړي ګودر کښي اوبه د ټولي لاري په اوږدو کښي تر سر نه اوښتې؛ زه او نواب د راده په وروستۍ برخه کښي پر دونه اوبو ورغلو، چي که مو لامبو نه وای کړې، اروګړو مو تر سرو اوښتې. په دې چي نور نو د راده د پوري وتلو څه نه وه پاته؛ او زموږ روحيه هم د هر ګام په اخيستلو سره لا پسي پياوړې کېدله، ځکه مي نود نواب جان سايوان هم له لاسه و نه غورځاوه.

اوبه لکه څنګه چي په ظاهره ډېري وحشتناکي ښکارېدې، په حقيقت کښي هغونه خطرناکي نه وې. دې خبري د ژوندانه په خورا لوی او اساسي راز زما سر را خلاص

کېږ. که سړی یو څه په ځیر او دقت و ګوري د ژوند ناخوالي اوکړاونه هم د ارغسان د خړو او سرکښه اوبو غوندي په ظاهره ډاروونکي او ملاماتوونکي ښکاري؛ خو کله چې څوک په کلک هوډ، مړاني او غښتلوالي د مبارزې و ډګر ته ور و دانګي؛ ربړو او کړاوو ته اوره ورکي، بیا نو د سختیو او پېچومو خیالي غرونه هم یو په بل پسې له لاري ایسته کېږي. هر څه په خپله اصلي او واقعي بڼه څرګندېږي. هوډمن او غښتلی انسان د واقعیتو په پوهېدو سره د مقاومت، پرمختګ او بالاخره بري روحیه مومي. بېله شکه، د پرمختګ او بریالیتوب دروازې تر هغه مهاله نه خلاصېږي، چې د انسان په وجود کښې و یوه سپېڅلي ارمان او هدف ته د رسېدو مینه او عشق موجونه او ټوپونه و نه وهي. په واقعیت کښې همدا مینه او ولوله ده، چې انسان تر وروستي منزله رسيي. نواب جان او زه هم د اوبو د ژوروالي تر پوهېدو او مناسب ګوډر وروسته نور د ارغسان له خړو او وحشتناکو اوبو څخه نه ډارېدلو. د کنداري مجاهدینو زړور اقدام او خپل پیاوړي هوډ دونه لوړه روحیه را کړې وه، چې پر کوچنییو غوټو سربېره مو آن لوی سایوان هم له ځان سره پوري ایستئ.

– تا خو ماشاءالله سایوان هم را پوري ایستلئ دئ. نواب له لیري راږغ کړه.

– هو! خدای زه او سایوان دواړه و ساتلو. له ځانه سره مي فیصله کړې وه، چې د سر تر خطر را په دې خوا یې نه غورځوم. نواب جانه! ما و تا باید د دې کنداري مجاهدینو منتبار اوسو، چې له یوې خوا یې د اوښتو ګوډر را وښیه؛ او له بلي خوا یې د دې د خړو، یخو او ژورو اوبو له وهمه خلاص کړو.

– که دوی نه وای، چې د زمري زړه دي را کړئ وای و دې خړ او لېوني رود ته نه را ګډېدم. نواب جان په خندا خندا را غبرګه کړه.

څو دقیقې مو د راده پر غاړه دمه وکړه. وروسته په سترو او ستومانه ګامو د ارغسان د پینځه ستوریز هوټل پر لور ور رهي سوو. د د رود له غاړې څخه د ارغسان تر پینځه ستوریز هوټل پوري د ولاړو اوبو،کانو او ډبرو په منځ کښې د پښو د لړ و ډېر یوه کیلومیتر مزل ؤ. هوټل ته په رسېدو سره مو د خدای شکرونه ادا کړل. د مجاهدینو ډله هم د څوکسیزو ډلګییو په بڼه د هوټل په بېلابېلو برخو کښې په چایو چښلو اخته وه. د هوټل غولی د چت څڅېدو له وجې څو ځایه لوند خیشت ؤ. سره له دې هم و هغې کوډلي ته پینځه ستوریز هوټل غوندي ښکارېدئ، چې د ارغسان پر آ غاړه د هوټل په نامه جوړه سوې وه. البته، وروستییو سېلاوو د ارغسان د هوټلو کاروبار هم سوړ کړئ ؤ؛ ځکه د دواړو خواوو (کندهار او چمن) موټرونه د د لارو د بندېدو له اسیته په ټپه ولاړ وو.

ما او نواب هم هوټل ته په رسېدو سره له مجاهدینو څخه یو څه ګوښه خپلي لندې غوټکۍ و غوړولې؛ او سمدستي مو د چایو پرمایښت ور کئ. په څو دقیقو کښې شنې چایي حاضري سوې، چې په ډېر خوند خوند مو و چښلې. البته، د ارغسان په پینځه ستوریز هوټل کښې د چایو بیه د کراچي او اسلام

اباټ/آباد تر پینځه ستوریزو هوټلو په کمه نه وه.

تر چایو چښلو وروسته مو د لمانځه اداینه وکړه. ما او نواب لا د ډوډۍ خوړلو په اړه سوچونه کول، چې نابېره د مجاهدینو د ډلې څو کسه د هغه روسي ټکټر ( ټراکټر ) و لویې ټېلۍ ته ور وختل، چې د هوټل و مخ ته ولاړ ؤ؛ او ټکټروان یې له څو نورو ملګرو سره د هوټل په یوه کونج کښې په چایو چښلو بوخت ؤ. وروسته د مجاهدینو پاته کسان هم د ټکټر و خوا ته ور و وتل.

– نواب جانه! دا ټکټر لکه چې ښار خوا ته ځي. راځه چې ما و تا هم ور و خېژو.

– راځه چې ور سو.

زما او نواب لا په هېڅ سر نه ؤ خلاص، چې ټکټروان او ور سره ملګري یې د سترګو په رپ کښې د ټکټر و مخکنۍ برخې ته ور و ختل؛ او بېله ځنډه د ټکټر د چالانېدو ږغ پورته سو.

– اندېواله دا ټکټر چیرې ځي؟ دا پوښتنه مې له هغه مجاهد ځوان څخه وکړه، چې د ټکټر د ټېلۍ په وروستۍ برخه کښې و دروازې ته نیژدې ولاړ ؤ.

– را وخېژئ! د خدای بندګانو دلته به څه وکئ؟ ټکټر خو به مو لا تر یو ځایه ورسیي.

– که ښار خوا ته ځي، موږ مو هم ملګري یو.

– را وخېژئ ټکټر د « ترنک » وخوا ته ځي. د مجاهدینو له ډلې څخه یو بل ځوان را ږغ کړه.

ما او نواب هم ځړنیېو وزګړو غوندې په یوه ټوپ و ټېلۍ ته ور وغورځېدو. په څو شېبو کښې د ترنک پر لور سفر پیل سو. د ټکټروان ملګرو د ټکټر د شا د لویو ټیرو پر میټګاټ (مډګارډ) ځانونه تکیه کړل؛ او موږ اولس – اتلس کسه د ټکټر په ټېله کښې ځای پر ځای سوو. ځیني ناست، ځیني ولاړ او ځیني نور کله ناست، کله ولاړ وو.

د ټکټر په ټېله کښې د مجاهدینو د ډلې یوه ځوان له کوټې یا چمن څخه د نانوایي خورا ډېرې بریښته ډوډۍ راخیستي وې، چې په یوه شین رنګه چارخانه دۇسمال کې پېچلې وې؛ او د خوړو خبرو او مرکو په ترڅ کې له خپل ځنګ والا مجاهد ملګري سره په خوند خوند خوړلې. د مجاهدو ځوانانو د ډوډۍ خوشبویۍ او کړپهار زما لوږه تر پخوا نوره هم زیاته کړه. ډوډۍ والا ځوان د دې واقعیت په پوهېدو سره، چې زه او نواب د دوی د ډلې غړي نه یو؛ او د دوی ملګرو غوندې بې ست و سلا ډوډۍ نه اخلو، نو یې په ډېر احترام د ډوډۍ غوټکۍ زما و خوا ته را واړوله.

– اندېوالانو! در واخلئ ډوډۍ.

ما چې له خدایه مازې نرۍ ست او سلا غوښتل، بېله ځنډه مې د ډوډۍ له غوټې څخه لو ټوټه را وشکوله. نواب ته مې ور ټېره کړه، خونښخه چې ولې یې و خوړولو ته زړه ښه نه کئ. د دې ټوټې تر ختمېدو وروسته بیا ډوډۍ ساتونکي مجاهد ځوان یوه بله لو ټوټه را مخ ته کړه. پر نواب جان مې هم ټینګار وکئ، چې یو څه خوري. دا پلا یې یوه ټوټه واخیستله او په خوند خوند یې و خوړله. داسې پوه سوم، چې

نواب جان تر بتره وږی سوئ ؤ، خو، ښاریانو غوندي یې رسمي ست و سلېغه غوښته.

– کور مو ودان. په دې رودو او دښتو کښې سړی ډېر وږی کیږي. ستاسي بریشتې ډوډۍ تر شاتو او شکرو ښه خوند وکئ. په خندا خندا مي و ډوډۍ والا مجاهد ځوان ته و ویل.

– ریشتیاوایې لار اوږده ده. سړی وږی کیږي.

– نوره لار وچه ده. انشاء الله ژر به تر ترنکه و رسیږو. تر ترنک چې پوري وتو، بیا نو د یوې خاشې جنجال نسته. په لسهاوو موټران ولاړ دي، سیده مو ارغنداو، میربازار او ښار ته بیایي. د ټکټر په ټېله کښې د ولاړو مجاهدینو له ډلي ځخه دوو ځوانانو په خپلو منځو کښې دا تبصره کوله.

د مجاهدینو د دې دوو ځوانانو د اټکل پر خلاف لار هره خوا اوبو او لندبل نیولې وه. په لږ و ډېر یوه کیلومیتر لار کښې درې واره ټکټر بند سو. زما او نواب په شمول به د ټکټر د ټېلې ټول سپرلي تیارسی عسکرو غوندي په یوه دقیقه کښې له ټېلې ځخه را کښته سول؛ او د زوروري ډکې په ور کولو سره به ټکټر ګوړی مؤری له پستو خاورو او شګو ځخه را وایستئ.

ټکټر د لاري د خرابۍ او د مسافرو د وزن د ډېروالي په وجه، په هره تپه، هره کنده، هر خوړ او او هر لښتي کښې د پورته کښته کېدو توان نه لاره. ډېرو ټېلو او ټمبو د ټکټر سپرلي له اخه و توخه واچول. په پای کښې د مجاهدینو د ډلي مشرانو په خپلو منځو کښې پرېکړه وکړه، چې ټکټر پر خپل ځای پر پرېدي؛او خپل مزل ته په پښو دوام ور کي. ما او نواب جان هم په پوره خوښۍ او دلچسپۍ د دوی لار په خوله ورکړه. مګر ما او نواب جان ته د غرو، رودو او دښتو په دې خطرناک سفر کښي تر کندهاري مجاهدینو ښه لارښوؤنکي چیري وو؟ هغوی په ریشتیا سره نه یوازي د اوبو، بلکي د وچو لارو فاتحان هم وو. تا به ویل د سټلایټ ناویګېټر یا قُطب نُما پرمختللي وسایل ور سره دي، چي په دې بې سر و بره دښتو او خوړو، لوړو او ژورو کښي، هغه هم د شپې له خوا، د یوه اینچ په اندازه غلطي نه کیي؛او مخامخ د خپل منزل پر لور رهي دي.

د مجاهدینو ډله د یووستوي لیک په بڼه رهي وه. زه او نواب د لیک په وروستۍ برخه کښي روان وو. کله به لوړي یا ژوري، کله به خوړونه او لښتي، کله به پستې یا شګلني مځکي مخ ته را تلې. په اوبو کښي د ګډېدلو پر مهال هیڅا دا زحمت او تکلیف نه ایستئ، چي چوټي یا بوټونه وباسي. دې کار ځو علتونه لرل: یو خو د هر چا پښې دونه زخمي او ګرړل سوې وې، چې حتا له ښوی کاڼو او کوچنییو شګو ځخه هم په تکلیف کېدې. بل دا چې د ولاړو او روانو اوبو هیڅ خلاصېده نه وه. د هر چا پوښاک تر شل پلا هم زیات لوند او وچ سوئ ؤ، ځکه یې نو له هیڅا سره د وچ ساتلو شوق او ځوَب نه ؤ پاته.

د هر چا په زړَه یو خدای خبر ؤ، خو د کنداري مجاهدینو ډله ظاهراً په داسي تېزۍ او مستۍ پر لار رهي وه، چي تا به ویل د هر یوه بدن له پولادو ځخه جوړ سوئ دئ.

د خدای کړه او زموږ ور ته کاته وه، د لاري په اوږد وکښي نابېره د هوا مخ وګرځېدئ. تېزو بادو د اسمانو پر مخ توري او خړي اوريځي يوې او بلي خوا ته شو په شوکړې. له دې سره جوخت د اسمان ناوي پلو له مخه ليري کئ؛ په شغلو او پلوشو يې د شاوخوا لوړو او ژورو، کندو او خوړو توري تياري روڼا سوې. د مځکي او اسمان په روښانه کېدو سره زموږ هوډمنو لارويانو سترګي او زړونه هم نوراني سول.

په لوړو او ژورو، لندو او کږوورو لارو کښي تر څو ساعته پرله پسې مزل وروسته، له ليري څخه د سپيانو د غپاوو دپ ږغونه وارويدل سول. مالومېده چي د لاري په اوږدو کښي وکم کلي ملي ته ور نيژدې سوې وو. څو سوه ګامه وروسته درې – څلور سپيني خيمې هم تر ستر ګو سوې. په ور نيژدې کېدو سره يې څرګنده سوه، چي پر هواره مځکه دا ولاړي ټيټي خيمې د سيمې د مجاهدينو اوتاکونه دي. په خيمو کښي مېشتو مجاهدينو زموږ د اوږده کتار په ليدو سره سمدستي د درېدو ږغ وکئ. په دوو – درو دقيقو کښي د پېژندګلوۍ تولي پوښتني او معماوي حل سوې. وروسته زموږ د ډلي مځکښانو د هوسايي او شپې تېر دپاره دکلي د ماجت (جومات) پوښتنه وکړه. تر مالوماتو وروسته مود همغه يووستوي ليک په بڼه د ماجت و خوا ته لار سمه کړله.

په همدغو شېبو کښي د اسمان پر شنه لمن د يوې تېزي جنګي الوتکي ږغ وارويدل سو؛ الوتکه دونه تېزه وه، چي چا يې په اسانۍ سره تګلوری نه سواى سهي کولاى. زموږ د بهير انډيوالانو (مجاهدو او غيرمجاهدو) يې په تېرېدو کې چندان رهی و نه واهه؛ خو د سپينو خيمو و مخ ته ولاړو وسله والو مجاهدينو بر ښنا غوندي و خپلو مورچلو ته تراټ کړل.

څورلس – پينځلس دقيقې وروسته د پلو مساپرو يووستوی اوږد کتار و هغې خوني ته و رسېدئ، چي له کلي څخه د څو سوو ميټرو په فاصله پر نسبتاً لوړه او شګلنه مځکه جوړه سوې وه. دا خونه د دې کلي ماجت ؤ. د مجاهدينو ډلي و ماجت ته په رسېدو سره فوراً د کوټې ګرمولو بندوبست کړئ ؤ. په دې پوه نه سوم، چي په دې نيمه شپه کې لرګي له کمه کړل؟ په دې چي لښتي او لرګي هر څه لانده خيشته وو، په اسانۍ نه سوځل کېدل. له بله پلوه، ماجت بېله کوچنۍ دوه پله ييزه دروازې د هواکښ يا کړکۍ په نامه هيڅ نه لرل. د لندو لرګو او لښتو له سوځولو څخه د ماجت په اؤجره (حجره) کښي شنې خړوسکي پور ته کښته ګرزېدې.

– انډيوالانو را تېر سئ، لاسونه مو تاوده کئ! اور ته نيژدې مجاهدينو، ما او نواب ته له ليري را ږغ کړل.

– نوابه وروره! ستا که يخ کيږي، مخ ته ور تېر سه. زه په خپله له دودانو څخه لار نه وينم. دوې– درې دقيقې لا نه وې تېري، چي زما لېوني ټوخي د اؤجرې ټوله فضا و نيوله. په داسي حال چي مجاهدو څوانانو له دودجن اور څخه خوند اخيستئ، زه بيرته په تراټ له اؤجرې څخه د دروازې پر خوا را رهي سوم.

– لکه چي دودانو په عذاب کړې! نواب د اؤجرې له خولې څخه را ږغ کړه.

– عذاب څه کيې، نيژدې ؤ چي ساه مي و دريږي. تر دې ګرمۍ مي د دباندي يخه هوا پر سر و ستر ګو قبوله ده.

ښايسته ډېر وخت دباندي ولاړ وم. کله چي د اؤجرې فضا له دودانو او لوخړو ښه پاکه

سوه، بیا نو زه هم ور ننوتلم؛ او له دروازې سره څرمه مې و دېوال ته څنګ واچاوه. ځینې مجاهدین د ګرمې هوا له برکته په خواږه خوب ېده وو. ځینو نورو بیا په کوټه کښې د خپل وروستي سفر د خاطراتو په اړه یو له بله خوږې مرکې کولې؛ خو ما له ډېرې ستړیا او دودجنې هوا څخه سترګه پر سترګه کښېنښوولای سوای.

د ترنک د ماجت په اوجره کښې د مجاهدینو له ډلې څخه دوو- درو ځوانانو، د «میر بازار» د لَپ و جَپ په باره کښې هم تودې او په زړه پوري کیسې کولې. د میر بازار د نامه په اروېدو سره زه هم د «سرپوزې»، «پنجاو» او «باغ پل» په خاطرو کښې ډوب سوم. د جنګ او تباهۍ اور پر بشري او اقتصادي جغرافیې سربېره د سیمو پر سیاسي جغرافیې هم ژوره او دردونکې اغېزه ښندلې وه. د سرپوزې تر څنګ پراته میربازار ته اوس یوازې د «ارغنداو» له لارې تګ راتګ میسر ؤ؛ او دې کار کټ مټ داسې مانا لرله لکه څوک چې له سپین بولدک څخه د تفتان یا تورخم له لارې وچمن ته سفر وکې.

څه سر به مو خوړوم، دوه – دوه نیم ساعته د ماجت په دودجنه او تربوخته اوجره کښې په زحمت او کړاو تېر سول. وروسته سپېدې و چاودلې؛ او کرار کرار هرې خوا ته د روڼا پلو و غوړېدئ. د رودو او دښتو د اوږدو لارو مساپر وار په وار له اوجرې څخه را و وتل. له نېکه مرغه د ماجت و څنګ ته د پاکو اوبو ژور ځاه کېندل سوئ ؤ. هر چا له ځاه سره د پرتو خاورینو کوزو په مرسته اودسونه وکړل؛ او تر لمانځه وروسته بیا و سفر ته ملاوې و تړل سوې. د خوښۍ ځای ؤ، چې هوا نوره روښانه او په زړه پوري وه؛ د سفر ستومانوونکې او خطرناکه برخه تېره سوې وه.

ما او نواب بیا هم د غښتلو او نه ستړې کېدونکو کنداري مجاهدینو په شا پسې رهي سوو. تر لږ مزل وروسته د ترنک تپاند او څپاند رود را ښکاره سو. د رود و دواړو غاړو ته د مساپرو ګڼه ګوڼه مخ پر زیاتېدو وه. په همدې وخت کښې د مجاهدینو څو زورور فور بای فور جیپان له خپلو سپرلیو سره تر ترنک را پوري وتل؛ او سیده یې د چمن لار په خوله ور کړه. د مجاهدینو دا معتبران ښایي په خپلو نوو او پیاوړو پیجارو موټرانو غره وو؛ او ګومان یې کاوه، چې ترنک غونډي به تر ارغسان هم په څو دقیقو کښې واوړي! خو خبر نه وو، چې پیجارو میجارو یې اوس د ارغسان و توپانې څپو ته سترګې هم نه سې ور ښکاره کولای.

ورو ورو د عامو خلګو ځینې کوچنې او لوی موټرونه هم را ډېر سول. دا بېچارګان هم یا موږ غونډې د لارې له ټولو ناخوالو او خطرو څخه ناخبره وو یا یې زموږ د مجاهدو ملګرو غونډې له غرو او رودو، سېلاوو او توپانو څخه هیڅ مخ نه اړاوه.

د ترنک غاړې ته په رسېدو سره مې د پیښې او موږک د ښکار یوه صحنه هم ولیده. زموږ د ډلې ځینې مجاهدینو په وارخطایۍ او عصبانیت سره نارې وهلې: «مې پر برېدئ»، «هغه دئ ځغلي»، «دې خوا تې و خغستل» او داسې نور. تر څه پلټنې او ګروېږنې وروسته مالومه سوه، چې زموږ د ډلې مجاهدینو، ترنک رود ته د ګډېدو پر مهال د هغه حکومتي منصبدار یا عسکر څرک لګولئ ؤ، چې یو وخت له دوی سره په جبهه کښې بندي ؤ. تېښتېدلئ منصبدار یا عسکر (چې له جولې او ځېرې څخه د افغانستان د شمالي

سیمو اوسېدونکی ښکارېدئ) د سترګو په رپ کښي چیري نیهام سو. «څه کيي د ګوره زوی لکه پېری په مځکه ننوتئ!» زموږ د ډلي یوه مجاهد په ډېر قهر او خښم و خپل ملګري ته و ویل.

په دې چي د رود دواړو خواوو ته د مجاهدینو کروزینګ او فور بای فور جیپونه ولاړ وو، اتکل دا کېدئ چي په اصطلاح تښتېدلئ منصبدار یا عسکر به هم په هغو موټرو کښي ځان نیهام کړئ ؤ، چي د چمن پر خوا رهي وو. د مجاهدینو له یوې ډلي څخه و بلي ډلي یا له مجاهدینو څخه و حکومت یا له حکومت څخه و مجاهدینو ته اوښتل، پر کندهار سربېره په ټول افغانستان کښي څه عجبه پېښه نه وه.

که څه هم ترنک د اوبو د زیاتوالي په وجه په خورا تېزۍ او مستۍ څپې وهلې، خو د پسور او ژورتابه د لږوالي له اړخه د چندان اندېښنې وړ نه ؤ. د مجاهدینو د پیاوړو او زوررو کروزینګ موټرو له سیده پوري وتلو څخه داسي ښکارېدله، چي اوبه تر نامه لوړي نه دي.

په داسي حال کښي چي زموږ د لاريِ مجاهدین ملګري تېزو او چالاکو تازیانو غوندي د خپل ښکار په لټه کښي دوري هوري سرګردانه ځغاستي کولې، ما او نواب جان پایڅې را و نغښتې؛ او په پوره ډاډ او باور په ترنک ور ګډ سوو. اوبه ډېري یخي لګېدې. د ارغسان پر خلاف د ترنک د اوبو تېزوالي له یوې خوا او د سیند په تل کښي بې شمارو پیتو کانو له بلي خواد ښویېدو خطر ډېر زیات کړئ ؤ. ښایي د ترنک د پاکو او رڼو اوبو لوی او اساسي دلیل هم د هغه غرنۍ منشاء او ډبرینه تګلاره وه.

ما او نواب جان د اوبو پر زیات سړښت سربېره، د اتیات او کرارۍ لار واخیستله. یوازي

په یوه کوچنۍ برخه کښي اوبه تر نامه پورته سوې، په نورو برخو زیاتره تر نرۍ ملا کښته وې. په پینځلسو- شلو دقیقو کښي تر چمچه مست ترنک هم په خیر او سلامتۍ سره واوښتو؛ او په ډېري خوښۍ مو د کابل - کندهار د عمومي سړک پر لور ګامونه چټک کړل. د سړک غاړي ته په رسېدو سره مو سمدلاسه پر هغه هوټلګي واړول، چي ترنک خوا ته څرمه د ډامبر پر غاړه، په یوه خړه خیرنه خیمه کښي جوړ سوئ ؤ. اوږدو لارو او مزلو د ستړیاوو تر څنګ دونه زلخوږي کړي وو، چي تا به ویل هفتې هفتې موڅه نه دي خوړلي. له هوټل څخه مو شنې چایي او څه کلکي کولچې را وغوښتې؛ او په ډېر بې صبرۍ یې و خوړلو ته و جوړېدو. په هوټل کښي زموږ د لاري د ملګرو مجاهدینو له ډلي څخه هیڅوک نه لیدل کېدئ. خدای خبر څنګه او پر کمه تللي وو؟ زموږ له چایو څښلو سره د کابل - کندهار پر عمومي لار د موټرو، لارییو او ټکټرو تګ راتګ هم کرار کرار زیات سو. د ترنک - ارغسان دښتونه او رودنه د جهاد په کلونو کښي و چمن اوکوټې ته د مساپرو او موټرانو د تګ راتګ لو لار ګڼل کېدله. ښایي دکندهار پر هیڅ پاخه سړک دونه تګ راتګ نه کېدئ، لکه د کندو، ګړنګو، خوړو او رودو په منځ کښي پر دې پېچلې، ناارامه او خطرناکه لار. بېلابېلو جهادي تنظیمو له دې لاري څخه د خپلو جنګي اکمالاتو، ټېپیان لېږدولو او نورو ستراتېژیکو مخسدو دپاره پراخه ګټه اخیستله.

زه او نواب تر چایو چښلو وروسته، سمدلاسه و کندهار ښار ته د موټر موندلو په لټه کښي سوو. له ترنک څخه ځینو نور را اوښتي مساپر هم د کندهار په نیامت د سړک پر غاړه ولاړ وو. موږ هم ور سره و درېدو. په دې وخت

کښې د «ښارِ صفا» له خوا دوه ټکټرونه را روان وو، موږ ټولو یې د دربدو په خاطر لاسونه پورته کړل؛ خو یوه ټکټروان یې هم د درولو زحمت و نه ایستئ. وروسته درې لارۍ هم همداسې ښوی تېرې سوې.

د ترنک – ارغسان لار د سېلاوو په سَوَب د موټرو پر مخ بنده وه، ځکه نو هر چا د موټر په هیله یوازې دکابل و خوا ته ستر ګې شخې نیولې وې. ښایي دکابل له خوا راتلونکو موټروانانو په دې ګومان د موټرونو د درولو ته زړه نه ښه کاوه، چې ګواکې په لار کښې ولاړ کسان به بې کرایې و کندهار ښار ته سفر کول غواړي.

– نواب جانه! که هر موټروان داسې ښوی تېر سي، بیا به ښار ته څنګه خانونه رسوو؟

– ولا که پوهېږم د دې لوچکو موټروانانو سره هیڅ نه کېږي. نواب په دردمنه او عصباني لهجه وویل.

– ته راځه چې د هوټل له مالک څخه کومک وغواړو. دا موټروان زموږ و تاسې غوندي بې وسه خلګو څخه هیڅ حیا نه کیي. وروسته نور مساپر هم په موږ پسې د هوټل و خوا ته راغلل.

– چې موټر را نیژدې سو، تاسې مازې ما ته خبر را کئ. د هوټل و پارچال ته نیژدې سړي په نسبتاً آمرانه لهجه وویل. څورلس – پینځلس دقیقې وروسته د یوې بلې لارۍ مخ را مالوم سو. نواب په هوټل کښې ناستو مجاهدینو ته خبر ور کئ. له هغو څخه یو په دوو دقیقو کښې له کلاشینکوف سره و سړک ته را ووتئ. موټروان دکلاشینکوف په لیدو سره سمدلاسه لارۍ و دروله.

–استاذه چیرې ځې!

– کندهار ته ځو. موټروان او کلېنر په ګډه جواب ور کئ.

– دا مساپر به هم در سره بوزئ. وسله وال مجاهد ور غبر ګه کړه.

– ولې (ولې یې) نه وړو.

– اندېوالانو را و خېژئ! موټروان په زوره ناره کړه.

– ورځئ ورونو په مخه مو ښه. وسله وال مجاهد د خوښۍ او خواخوږۍ په څر ګندولو سره بیر ته په خیمه کښې د هوټل پر لور رهې سو.

د کندهار پر خوا روانه دا لارۍ د سوداګرۍ په مالونو بار وه. مساپر ګرده دې خوا، آ خوا پر بوجیيو سربېره کښېنستل. د شنه اسمان له زړه څخه راوتونکو زرینو وړانګو مې یو پلا بیا په ستړې او ستومانه وجود کښې خوځښت، پیاوړتیا او تازګې پیدا کړل. زړه مې له خوښییو او اومېدونو ډک ؤ. له زرو کېلومیټره واټن څخه د هغو عزیزانو په لیدو او راوستلو پسې را رهې وم، چې د وچې کلکې مجبورۍ په وجه مې شپږ میاشتې مخکې تر شا پرې ایښې وو.

لارۍ، لږ و ډېر یو ساعت وروسته د کندهار د دوراهې په سیمه کښې د پولیسو د پوستې و مخ ته و درېدله. کلېنر د لارۍ د مالو او مساپرو په اړه د پوستې له مسوولینو سره لنډې خبرې وکړې. ورپسې د پوستې له مؤظفینو څخه یو بې وسلې پولیس په داسې حال کښې چې کلېنر یې هم اړخ ته رهې ؤ، د مالو او مساپرو د کتنې دپاره و لارۍ ته را و ختئ. پولیس، د دوو – درو بوریيو په کښېکښلو او د مساپرو خوا ته تر یو چټک نظر اچولو وروسته بیر ته دستې په دستې کښته سو.

لارۍ په څو ثانیو کښې د ښار پر لور حرکت وکئ. څو دقیقې لا نه وې تیرې چې له اَزرَجې (حضرت جې) بابا سره و درېدله.

– را تا سئ ورونو! په خير کندهار ته را و رسېدلو. ټول مساپر د برېښنا په سرعت د لارۍ له باډۍ څخه را کښته سول؛ او بې ښه و بده يې خپله خپله لار په خوله ورکړه. ما او نواب د کرايي ور کولو دپاره په جېبو لاسونه ووهل، خوکلېنر د کرايې نه اخيستلو اشاره وکړه. موږ هم د کوروداني په ويلو سره خداى پاماني وکړه. ما ته دا بې پيسو سفر د چمن –ارغسان د «کومکداره جيپ» د بې انصافۍ جبيره او معاوضه ښکاره سوه.

د عيدگاه دروازې له تاريخي طاق يا شيشک سره د چمن – کندهار د لاري د نه هېرېدونکو خاطرو دروند او چپخولي ملگري (نواب جان) و ويل.

– انډيواله! را څه زما سره ولاړ سه. دلته دستي مو کور دئ. د غرمې ډوډۍ زما سره و خوره.

–ژوندي اوسې. پر لوى الله دي سپارم.

تر خداى پامانۍ وروسته، نواب د شاهي طبيلې لار واخيستله؛ او زه و هغه کوچني رستوران ته ور وختلم، چي دننه او دباندي يې څو کسه د ډوډۍ خوړلو دپاره ناست وو. د رستوران له پارچال سره د چاينکۍ، غورمې او پلو په زړه پوري خوشبويي د هر چا، په تېره بيا زما غوندي کوگل ختلو مساپرو پر زړونو منگولي لگولې. دوې– درې دقيقې وروسته د رستوران شاگرد پوښتنه وکړه:

– وروره څَشي خورې!

– څشي لرئ؟

– چاينکۍ، غورمه او اوريجي.

– ورور جانه! يوه چاينکۍ او څه مستې راوړه!

د رستوران شاگرد په څو دقيقو کې له ښايستې بريشتې ډوډۍ سره گرمه چاينکۍ، د مستو نسبتاً غټه شين رنگه خاورينه پياله او د اچارو کوچنۍ سپينه پيتلي پياله راوړه. يوه ډوډۍ مي په ډېره اشتها و خوړله او د بلي دپاره مي و شاگرد ته اشاره وکړه. که مي ريشتيا پوښتۍ د دوهمي ډوډۍ تر ختمولو وروسته مي هم د پوره مړېدو احساس نه کاوه. د ارغسان او تر نک په دښتو او کږنگو کښي اوږدو مزلو دونه زلخوړی کړئ وم، چي تا به ويل په ورځو او هفتو مي څه نه دي خوړلي. تر ډوډۍ وروسته مي سمدستي شنې چايي را و غوښتلې. تر چايو چښلو وروسته مي بېله ځنډه په عطاجان سراى کښي د سبحان د مشر ورور، ماليم (معلم) صاب قادر جان، د دوکان لار واخيستله. د شاه بازار له لاري و عطا جان سراى ته ورغلم؛ او هورې مې دې خوا، آخوا په دوکان پسې ستر گه ولغړوله.

د ارامۍ او سوکالۍ د کلونو پر خلاف، په شاه بازار او عطاجان سراى کښي د لارويانو او مشتريانو هيڅ ببروبار نه ؤ. د دې سرې ثنا په ليدو سره مي داسي نه گڼل، چي د اشرف البلاد کندهار په شاه بازار کښي قدم وهم.

په زړه کښي مي دوعاوي کولې، چي خداى وکي ماليم صاب دلې پر دوکان وموم؛ ځکه د سبحان له جزيي مالوماتو څخه يې موندنه گرانه برېښېدله. په عطاجان سراى کښي دا مهال د دوا خرڅولو دوه دوکانونه وو. تر دوري هوري سرسري کتلو وروسته مي د ماليم صاب دوکان په ستر گه نه سو. ناچاره مي له يوه دوکاندار څخه پوښتنه وکړه.

– هغه دوکان چي پر مخ يې خړ ټاټ هوار دئ، د ماليم صاب قادر جان دوکان دئ. شايد

د سودا مودا دپاره دباندي وتلئ يي. مالوميږي چي په کم لنډ کار پسي تللئ دئ. په دې چي دوکان يې خلاص پرېښئ دئ. دوکاندار و ويل.

- کور موودان.

شل - پينځه ويشت دقيقې وروسته قادر جان د غوښو، سبو، او ځينو نورو شيانو له يوې نسبتاً لويي غوټې سره را مالوم سو. په يوولسو- دولسو کالو کې ښله لنډي گيردۍ ږيري او توربخوني لونگۍ په ځېره او جوله کښي هيڅ بدلون نه ليدل کېدئ. له دې اسيته يې پېژندنه چندان گرانه نه وه. ماليم صاب د خپل همېشني عادت له مخي په کراره د دوکان و مخ ته بايسکل و دراوه؛ او پر کنجوغه تړلې غوټه يې په لاس کښي نيولې د دوکان و خوا ته را رهي ؤ. زې (زه يې) د دوکان مخ ته ولاړ وم. ښايي د مشتري گومان بې را باندي کاوه.

- مدير صاب سلام عليکم!

مدير صاب په ځير ځير زما و خوا ته وکتل او تر لنډ ځنډ وروسته يې وويل.

- هو هو هارون جانه! ته ؤ دا خای. را ځه دې خوا ته پر دې چوکۍ کښېنه!

ماليم صاب ژر ژر د دوکان له مخه ټاټ ايسته کئ؛ او د دوکاندار پر چم د دخل تر شا پر خپل ځای کښېنستئ. تر کښېنستو وروسته يې زما د مور او پلار، ورونو او نورو خپلوانو په باره کښي لنډي پوښتني وکړې.

- راځه چي کرار کرار کور ته ولاړ سو. نن ښله هغه هم د سودا او مشتريانو چندان خوند نسته. ماليم صاب تر لنډو پوښتنو اوگروېږو وروسته و ويل.

- تاسي په خپل کاروبار ښه پوهېږئ.

له دوکان ځخه تر کوره پوري د کابل، کندهار او کراچي د دوستانو په باره کښي خبري او مرکې رواني وې. ماليم صاب قادر جان چي يو وخت د کندهار د پوهني په رياست کښي د مدير په توگه کار کاوه، اوس په ميرويس ليسه کښي د تش په نامه ماليمۍ (معلمۍ) دنده بوخت ؤ. د جنگ او ناامنۍ اور تر نورو ورانيو او بدمرغيو د هيواد د ښوونې او روزنې و بهير ته ډېر لوی زيان اړولئ ؤ. مکتب، ماليم، شاگرد او کتاب ټول د جنگ او وحشت قربانيانان وو.

مازيگر خوا ته ماليم صاب تر کور دباندي د قدم وهلو پروگرام لاره. ما تې هم بلنه راکړه.

- ته هارون جان ځه کيې؟! پرېږده چي د کابل او کراچي د دوستانو کيسې وکې. د ماليم صاب سپينسري مور په جواب کښي ور ږغ کړه. ماليم صاب د دې جواب په اروېدو سره، په ځو شېبو کښي له کوره و وتئ. له مور، مېرمني او لوڼو سره يې زما د کيسو او مرکو لړۍ تر ښايسته ډېرو ساعتو پوري وغزېدله.

هر چا ته په کراچي کښي د افغانانو، په تېره بيا نيژدې خپلوانو او دوستانو د ژوندانه کيسې په زړه پوري وې. د ماليم صاب دوه ورونه (سبحان او شېر جان ) هم په کوټه کښي تر ځو کاله ژوند وروسته اوس زموږ سره يو ځای په کراچي اوسېدل. د ماليم صاب قادر جان مشره ورېنداره په عين حال کښي د هغه خوښينه هم وه. په دې خاطر يې مېرمني مينه لرله، چي د خپلي خور، خورځو، خوريانو او نورو خپلوانو په باره کښي په زور و زېر پوښتني وکې.

نور بيا ...



چي تکړه نارينه ئې زېږولي او روزلي دي. کيسه ده وايي چي د پوهنتون يو استاد چي څنگه ټولگي ته لاړ، محصلانو ته ئې وويل: نن به د پلاني شاعر په پلاني شعر باندي خبري کوو.

ده د شاعر په اړه معلومات ورکړل، د شاعر پر سياسي نظريې ، ديني عقيدې او کسب و کار وغږېد. د هغه پر شخصيت ئې رڼا واچوله، يادونه ئې وکړه چي پر دوست او دښمن ، پر هر چا گران وو. استاد چي د شاعر کورنۍ ژوند ته ورسېد، درسي ساعت ختم شو، خپلي پاڼي ئې ټولي کړې او د وتلو په وخت ئې محصلانو ته مخ واړاوه، ويې ويل: واقعاً ډېر ښه شعر وو!

د ټوکو دغه کيسه د ادبي مطالعاتو په هغه طرز پوري جوړه شوې ده چي پيروان ئې د ادبي اثر پر ځای د اثر د رامنځ ته کوونکي او د هغه د ژوند د چاپيريال او زمانې په اړه بحث ته ډېر اهميت ورکوي.

دغه طرز په لوېديځ کي د شلمي پېړۍ په لومړۍ نيمه کي وار په وار کم اهميته شو او ځای ئې ورو ورو (نوي کره کتني) ته ورخوشي کړ چي پخپله ادبي اثر ته ئې ډېره توجه کوله. د (نوي کره کتني) نظريې چي اوس نو زړه شوې ده، پر ادبي کره کتني باندي ژور اثر کړی دئ.

د ملي هينداري نکلونه موږ ته په ظاهره داسي ښکاري چي هر يو بېل جوړښت لري، خو د سټرکچرليزم د نظريې پر اساس که مطالعه شي، په ټولو کي به پټ مشترک جوړښت ووينو. مثلاً په ډېرو نکلونو کي به اتل داسي څوک وي چي پلار به ئې زوی نه لري او يو ملنگ به راځي، دعا به ورته کوي او نهه مياشتې، نهه ورځې او نهه ساعته وروسته به خدای زوی ورکوي او همدا ماشوم به په اينده کي د نکل اصلي کرکټر وي. د نکلونو نارينه اتلان معمولاً سفر کوي او دا سفر له خطره خالي نه وي.

ادبي نظريې له يو بله مختلفې دي او په هري يوې کي د پېچلي واقعيت پر يوه اړخ باندي زيات تاکيد شوی دئ. د روژې په پای کي چي د اختر د مياشتي سپوږمۍ سهي کوو، گوتي ورته کړو. کړو چي نظر مو تيت و پرک نه شي. هره ادبي نظريه د څو اړخيز واقعيت د جد اقل يوه اړخ د کاميابي مطالعې له پاره پکارېدلای شي. هر اثر ممکن د يوې نظريې يا څو نظريو په رڼا کي ښه توضيح کړو. ما ته د بهاوالدين مجروح پر خانخاني ښامار باندي د تبصرې په وخت د ادبياتو اروا‌پوهنيزه نظريه او اساطيري نظريه تر نورو مناسبي ښکاره شوې، خو د استاد الفت د نثر د خصوصياتو په باره کي چي مې ليکنه کوله، تر ډېره حده د بلاغي نقد پر اصولو باندې متکي وم.

زموږ پخوانی ادب پوهني د بلاغي نقد پر نظريې تکيه کړې ده او بلاغي نظريه ئې هم تقريباً ټوله په بديعي صنعتونو او بيان کي راټوله ده. په شلمه پېړۍ کي د شعر د توضيح له پاره د شاعر ژوند او زماني ته هم زياته توجه وشوه. زموږ اوسنۍ ادبپوهنه تر ډېره حده د شاعر د ژوند او زمانې په معرفي او د هغه د شعرونو د بياني او بديعي صنعتونو په پېژندلو کي خلاصه کېږي. که زموږ په ادبپوهنه کي د ادبياتو مختلفي نظريې چي ټولنپوهنيز، ژبپوهنيز او اروا‌پوهنيز بنيادونه لري، شاملي شي، د ادبياتو فارغان به مو ادبي اثارو ته د نوي کتني وس پيدا کړي او پر ادبياتو سربېره به تاريخ، سياست، ټولني او فرهنگ ته له نويو ليدلوريو وگوري. پخوانو مورخانو به پر دې څېړنه کوله چي څه پېښ شول؟ خو هغه صاحب نظران چي تاريخ ته اوس د نويو نظريو په رڼا کي گوري له دې سره زياته دلچسپي لري چي پېښه څنگه تعبير او تفسير شوې ده؟ او دغه تفسيرونه د خپلو مفسرانو په باره کي څه راښيي؟ هغه څه ته چي د ۱۳۵۷ کال د ثور پر اوومه پېښ شول، ځيني کسان د ثور انقلاب وايي، اکثره کسان ورته د ثور کودتا وايي، يو شمېر نور ئې د ثور حادثه بولي او يو نيم ځای د تحول صفت هم ورته استعمال شوی دئ. د تاريخ د نويو نظريو د پيروانو په نظر، تاريخي معلومات په شعوري يا لاشعوري ډول د ليکوال د ليدلوري تر اغېز لاندي دي او که دغه ليکوال هر څومره زيات باوري وي چي عينيت او بې طرفي ته وفادار پاتي شوی دئ او خپلي غوښتني ئې په ليکنه کي ته دي شاملي کړي، هغومره ډېر امکان شته چي ليکنه ئې د هغه چاپيريال او فرهنگ تر اثر لاندي وي چي د ليکوال شخصيت ئې جوړ کړی دئ.

له روښانيانو پرته نورو پخوانو شاعرانو روښان پير په ښه نوم نه دئ ياد کړی، خو له دې سره سره ئې روښاني شاعرانو لکه ميرزاخان او دولت لواني ته په درنه سترگه کتلي دي. له دې واقعيته موږ دا نتيجه اخلو چي زموږ پخوانو پر شاعر باندي د قضاوت په وخت د هغه عقايد چندان په نظر کي نه نيول. د دې مثال له راوړلو مي منظور دا دئ چي ليکوال او ويناوال د يوې خبري د کولو يا نه کولو له پاره ممکن داسي پرېکړه وکړي چي دی ئې په اصلي انگېزو پوه نه وي.

اوسنۍ اکثره ادبي نظريې د اوسنۍ ژبپوهني د پلار فردينان دو سوسور تر ژور اغېز لاندي دي. د فردينان دو سوسور پر مرگ سل کاله تېرېږي. ( په ۱۹۱۳ کي مړ دئ) خو عجبه دا ده چي زموږ ژبپوهانو په ادبي بحثونو او کره کتنو کي له نوي ژبپوهني تقريباً استفاده نه ده کړې.

درې، څلور کاله پخوا ډاکتر احسان اذري په کابل کي وو. اذري چي په استراليا کي د ادبياتو دوکتورا اخستې ده، د ادبياتو له ځينو نويو نظريو سره چي د ژاک درېدا، مېشل فوکو او ژاک لاکان غوندي کسان ئې په رامنځ ته کولو کي لويه برخه لري، اشنا دئ، خو د کابل په علمي کړيو کي د ادبياتو له نويو نظريو سره اشنايي دومره کمه وه چي له ده څخه استفادې ته ضرورت احساس نه شو.

د ادبياتو د نويو نظريو په باره کي د ځينو خبرو کسانو ويناوي، د يو شمېر گټورو اثارو ژباړه او په دې باره کي لږ تر لږه يو علمي سمينار به زموږ ادبي حلقې د نويو نظريو اهميت او افاديت ته متوجه کړي.

# Kandahar

Bi-Monthly Magazine of Kandahar information & culture Department



ځوانیمرګ شهید عبدالقدیم پتیال

(د ښاغلي ناصر ریشا د هنرمندو ګوتو محصول)




The Afghanistan Subnational Governance Programme


چاپځای: ملالی مطبعه - کندهار